يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ -

؎ توحید کی امانت سینوں میں ہے ہمارے ؛
آساں نہیں مٹانا نام و نشاں ہمارا ؛

# مسئلهٔ وسیله

په دے رساله کښ د مسئلهٔ وسیله مفهوم و اقسام د بیانولو نه
علاوه ابتداء کښ یو څو بنیادی قواعد او په آخر کښ د علامه

## شیخ الاسلام ابن تیمیه حالات

هم بیان شوی دی۔ او د وسیلے متعلق د حافظ کفایت الله صاحب په
دلائل او نظریات باندې تبصره او تنقید هم شامل دے۔

تالیف =
گوهر رحمان =

شائع کرده
شعبهٔ نشر و اشاعت انجمن اسلامیه هوتی مردان

مکتبه فضل غفور، کالوخان
قیمت :- یو روپیه پنځوس پیسے (۱٫۵۰)

# فهرست عنوانات

# بسم الله الرحمٰن الرحیم ○

الحمد لله الذی وفقنا لقبول احکامه الاعتقادیة والعملیة وسلکنا علی منهاج اسوة نبیه المستویة المستقیمة والصلوٰة والسلام علی رسوله الذی اظهر دین الحق علی الدین کله باقامة التوحید النظریة والفعلیة وعلی اله واصحابه الذین جاهدوا و سافروا لاجراء هذا التوحید علی السنة النبویة۔ اما بعد۔ په ۲۹ محرم سنه ۱۳۸۱ھ سنه ۱۹۶۱ء اجولائی باندې څما دوست مولانا محمد ګل رحیم صاحب اسماري د اهتمام لاندې د هغه چلې مکتبې "مکتبه رحیمیه قصه خوانی پیښور" د طرف نه یوه کتابچه "الذخائر لاهل البصائر" شائع شوې ده. مصنف ئې مولانا حافظ کفایت الله صاحب ابن قاضی امان الله صاحب د پاکئ تحصیل صوابۍ دې.

حافظ صاحب د کتاب په اول کښې فرمائيلي دي چه څو نړ د وطن وهابیان د بعضې هغه مسئلو نه انکار کوي. کومې چه د اهل سنت والجماعة اتفاقي مسئلې دي. په دې وجه زه نه خدائي د رضا د پاره د دې مسئلو وضاحت او اثبات کومه. حالانکه ما چه دا رساله او کتله نو په دې نتیجه اورسیدم. چه حافظ د درېو حالتو نه خالي نه دې.

(۱) ده ته د فریق مخالف د دغې مسئلو متعلق نقطهٔ نظر او مسلک باندې پوره تنقیحی علم حاصل نه دې

(۲) او یا قصداً سره د علم نه په مسلک د فریق مخالف باندې د محل نزاع توضیح او تنقیح هم نه ده کړې. او د مغالطې ورکولو د پاره ئې د "تخلیط المباحث" نه کار اخستې دې. کوم چه د یوه معقول انسان، منصف مسلمان او بیا خصوصاً د فقیه مذهب امام نعمان رح د اوچت شان مناسبت نه لري. د دې وجه نه څو نړ حسن ظن هم دغه دې چه دوئ به سره د علم نه دا کار نوي کړې. بلکه د فریق مخالف د مسلک متعلق به په غلط فهمۍ کښې مبتلي وي والعلم عند الله

(۳) او یا به دوئ ته د استدلال او د نقض استدلال شرائط معلوم نه وي. چه په هغه دلائلو فریق مخالف د مسلک رد کوي. چه بعضې خو د دغې مسلک د تردید په ځای تائید او توثیق کړي او بعضې کم از کم د دې مسلک مخالف نه دي. څو نړ حسن ظن د دې صورت اجازت هم نه ورکوي. ځکه چه حافظ صاحب یو ښه مدرس او سند یافته عالم دې. والله اعلم.

د رسالې د مطالعې نه پس ځما خپل زړه هم دا مناسبه اوګڼله. او ډېر طالبان او دوستان هم
لباندې باعث شو. چې په دې رساله باندې یو علمي او انصافي تبصره اوکړې شي. تیاره لا دده
چه کړې اول صورت وي. نو د مصنف غلط فهمي به لرې شي. او که دویم او دریم صورت
وي. نو د کتاب مطالعه کوونکي به د مغالطې نه بچ شي.
د دې رسالې په مندرجاتو باندې تفصیلي تبصره که څه هم دې مختصر مضمون کښې نشي کېدې
البته ځما کوشش به دا وي. چې په مختصرو الفاظو کښې من الله تبصره اوشي.
(وما توفیقي الا بالله. اللهم ارنا الحق حقا وارزقنا اتباعه والباطل باطلا وارزقنا اجتنابه)
په اصل مسائلو باندې د تبصرې نه قبل دیو څو ضروري او د مناسبو قواعدو په طور
د مقدمې ذکر کول مفید ګڼړم.

## مقدمه

**اوله قاعده.** د ثواب او د عذاب د ښو او د بدو د مفید او د غیر مفید کارونو بیانونکي او جاري کوونکي حاکم صرف
الله تعالی دې. إن الحکم إلا لله. (یوسف ع ۵ پ ۱۲) حکم کوونکي او د شرعي احکامو جاري کوونکي صرف
الله تعالی دې. ألا له الخلق والأمر. اې خلقو خبردار شئ چې دا عالم پیدا کړې هم هغه دې
او په دې کښې حکم او امر هم د هغه چلیږي. اه

علامه ابن الهمام الحنفي المتوفى ٨٦١ھ فرمائي.

الحاکم لا خلاف في ان | په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې چې حاکم او نافذ کوونکي
الله رب العلمین [1] | د شریعت صرف الله دې. حکم چه د ټول مخلوق بالونکي دې اه

حجة الاسلام امام غزالي رح فرمائیلي دي.

فانما النافذ حکم المالك | د حکم د جاري کولو حق صرف مالك لره وي چې په خپل غلام
على مملوکه ولا مالك الا | ئې جاري کړي. او مالک خو بې د حق تعالی نه بل څوک نشته
الخالق فلا حکم ولا امر الا له | نو حکم او امر کول هم د هغه حق دې.

بهرحال دا مسئله چې خالق نه بغیر بل څوك حاکم او جاري کوونکي د شریعت نشته دې
یوه واضحه او منلې شوې مسئله ده. نو په دې کښې د ډیر تفصیل ضرورت نشته دې. ولو

**دویمه قاعده.** الله تعالی چه حاکم او شارع احکام دې. د مشروعاتو او د غیر مشروعاتو

[1] تحریر الاصول ضمن شرحه ص ۸۹ ج ۳ ط ۲ المستصفی ص ۵۳ ج ۱ طبع مصر ۱۲

دَخواو دَبد وکار ونو دَ پیژندګلو او دَ معلومولو دَپاره څلور بنیادونه او اصول وه دلائل مقرر کړیدی. کتاب الله. سنّت ثابته دَرسول الله ﷺ. اجماع شرعی چه په نقلِ صحیح سره ثابت وی. او قیاس شرعی چه په نقل صحیح سره ثابت وی. دَدے څلورو واړو حجیت او اصلیت پخپله الله تعالےٰ په ذریعه دَوحی سره په قرآنِ کریم کښ ثابت او واضح کړیدے. او څومره چه وطن کښ په دے باره کښ څه نزاع او اختلاف رائے بالکل نشته دے. دَ دے وجه نه دا قاعده هم یوه منلے شوے قاعده شوه. چه دَ دے دلائلو نه کوم شے ثابت نه وی. هغه به کارِ خیر او عبادت نشی ګرزیدے.

دریمه قاعده. دَقیاس او دَ اجتهاد مرتبه په اتفاق دَ اُمت سره دَنصوصو نه وروستو ده. او پخپله مجتهد ته هم دا اجازت نشته دے. چه په محل دَنص کښ قیاس او اجتهادِ قیاسی نه کار اخلی. نو مقلد دَ دغے مجتهد ته به څرنګے دا جائز شی. چه دَقرآن کریم یا دَصحیح حدیث دَغیر متعارض دلیل باند سره دَ یو هیڅ نه دَمجتهد او فقیه یا دَبل مقتدی او مُرشد په قول او طریقه باند کلک شی؟ اګر که صحیح او واقعی مجتهد او مقتدی او مرشد قصدًا او عمدًا خود قرآن وحدیث په مقابله کښ دَقیاس او رائے نه کار نه اخلی. او علمی لغزش او غلطی اګر که کیدے شی لیکن ډیر کم. مګر دا خبره واضح ده. چه دوی څو معصوم نه دی. او کیدے شی چه دَ یوے مسئلے متعلق حدیثِ صحیح موجود وی. خو مجتهد ته په دغه وخت کښ نه وی رسیدلے. او دا نه څه بے ادبی ده او نه څه بعیده خبره ده. علماؤ ته ښه معلومه ده. چه ډیرو صحابوُ ته بعض روایاتِ ثابته معلوم نه وُو. او دَ نورو صحابوُ نه ئے زده کړی وُو.

بلکه امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله نه "زهیر بن معاویهؒ یو ځل تپوس اوکړو. چه کافرانو ته دَ یو مُرتی امن ورکول معتبر دی او که نه. هغوی اوفرمایل چه کړے دے په جنګ کښ نه پیک نه وی. نو ند ے معتبر. زهیرؒ وائی چه ما دوی ته دَعاصم احولؒ یو روایت بیان که. چه په یوه موقع باند حضرت عمرؓ دَ غیره مقاتل مُرتی امان معتبر کړے وه. نو امام صاحبؒ سکوت اوکه. او لس کاله پس چه زه بیا کوفے ته راغلمه. او هم دَ دغے مسئلے متعلق مے تپوس اوکړو نو امام صاحبؒ راته دَعاصم احولؒ دَروایت مطابق جواب راکه. نو زه پوهه شوم چه امام صاحب دَ آثارو متبع دے".[1]

[1] الانتقاء لابن عبد البرؒ ص۱۳۰ وص۱۴۱

هم دا رنگے په نورو مسئلو کښې امام صاحب او نورو فقهاؤ په نصیاند دَ علم نه پس رجوع کړے ده. دَ دے وجه نه په ډیرو روایاتو کښې دَ عالِم دَ لغزش نه خلقوته تنبیهات ورکړی شوی دی.

مثلاً (۱) وقد ذکر البیهقیؒ وغیره من حدیث کثیر بن عبد الله بن عمرو بن عوف رض عن ابیه عن جده مرفوعًا اتقوا زلة العالِم و انتظروا فیئته.

(۲) وذکر من حدیث مسعود بن سعد عن یزید بن ابی زیاد عن مجاهد عن ابن عمر رض قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان اشد ما اتخوف علی اُمتی ثلث زلة عالِم الحدیث

(۳) وذکر من حدیث حماد بن زید عن المثنی بن سعید عن ابی العالیة قال قال ابن عباس رض ویلٌ للاتباع من عثرات العالِم قیل وکیف ذلک قال یقول العالِمُ من قبل رأیه ثم یسمع الحدیث عن النبی صلی الله علیه وسلم فیدع ما کان علیه ویقضی الاتباع بما حکم به

(۴) وقال تمیم الداری رض اتقوا زلة العالم فسئله عمر رض ما زلة العالم قال یزل بالناس فیؤخذ به فعسٰی ان یتوب العالِمُ و الناس یاخذون به.

امام بیهقیؒ او نورو محدثینو په سند دَ کثیر بن عبد الله سره دَ نبی کریم علیه الصلوٰة والسلام نه روایت کړے دے چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی. چه دَ عالِم دَ لغزش او غلطی نه ځان ساتئ او دَ هغه رجوع ته منتظر اوسئ اه

او امام بیهقیؒ په سند دَ عبد الله بن عمر رضی الله عنهما سره روایت کړے دے. چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی. چه ما ته دَ خپل امت نه دَ دریو څیزونو ډیره خطره ده. یو دَ هغے نه دَ عالِم لغزش او غلطی ده. اه

او امام بیهقیؒ دَ حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه حدیث نقل کړیدے. چه هغه فرمائیلی دی چه هغه خلق تباه شی کوم چه دَ عالِم دَ لغزشونو او غلطو تابع ری کوی. دوی ته چا اووے. چه دا به څرنګے وی. نو دوی ارفرمایل چه یو عالِم به دَ خپل اجتهاد نه یو فتوی ورکوی او بیا ورستو به دَ نبی کریم علیه السلام نو حدیث دَ ځان نه واوری. نو دے به خپل اولنے مسلک پریګدی. او دَ ده تابعداربه هم په هغه فتوی فیصلے کوی. (نو دا هلاکت شو) حضرت تمیم داری رض اووے چه دَ عالِم دَ لغزش نه ځان ساتئ. نو عمر رض ورته تپوس اوکړ. چه دَ عالِم لغزش به څرنګے وی. نو هغه اوفرمایل. چه یو عالِم به خلقوته غلطه فتوی ورکی. نو دوی به پرعمل اوکړی. اوکیدے شی چه هغه دَ دے نه واپس شی اه

الله تعالٰی په عامو لفظونو کښې فرمائیلی دی. چه دَ قرآن و حدیث دَ فیصلے دَ واضح کیدو نه

---

۱ اعلام الموقعین لابن القیمؒ الجوزیؒ ص۲۱۶ ج۲ اصندی نسخه ۱۲

پس یو کس ته هم دا اختیار نشته دے. چه هغه ترینه ډډه اوکړي. یا د رائے نه کار آخلي یا د بل چا خبره اومني.

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ

د هيڅ مؤمن سړي او د مؤمنې ښځے دا شان نه دے. چه الله تعالى او د هغه رسول څه فيصله اوکړي. او بيا هم د هغے نه دوئ سره بيا هم د خپلے معاملے متعلق څه اختيار وي اه

هم د دغے قياس او رائے په ډيرو روايا تو کښې مذمّت شوے دے. ورنه قياس شرعي خو په قرآن کريم او په سنّت رسول الله او په اجماع د صحابو سره ثابت دے. د نص په مقابله کښې چه کوم قياس او رائے او چلولے شي. د هغه د مذمّت اونا کاوالي متعلق يو څو حوالے اوګورئ. چه دا قاعده ښه واضحه شي.

(۱) عبد الله بن عمر رض فرمائي. چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي. چه هغوئ فرمايل. چه الله تعالى علم د علماؤ د سينو نه نه اوباسي. ليکن علماء به سره د علم د هغوي نه وفات کړي. نو د جاهلانو د دين به فتوے او غوختے شي. نو دوئ به محض په رائے فتوے ورکول شروع کړي. نو بخپله به هم ګمراهان شي او نور خلق به هم د ځان سره ګمراهان کړي.[۱]

(۲) قال سهل بن حنيف اتّهموا رأيكم على دينكم[۲]

اے خلقو په ديني مسئلو کښې په خپل رائے باندے اعتماد مه کوئ بلکه په نصوص باندے اعتماد کوئ.

(۳) عن عمرو بن الحارث عن عمر رض اياكم واصحاب الرأى فانهم اعداء السنن اعيتهم الاحاديث ان يحفظوها فقالوا بالرأى فضلوا و اضلوا[۳]

حضرت عمر رض فرمائيلي دي. چه ځان اوساتئ د هغه خلقو نه کوم چه صرف په خپلے رأى عمل کوي. او فتوے ورکوي. ځکه چه دوئ د ثابت شده طريقو دشمنان دي. د احاديثو د ياد ولو د پوهيدلو طاقت نه لري. نو په رائ فتوى ورکوي نو ګمراه کيږي اه

(۴) عن الشعبى قال اياكم والمقايسة والذى نفسى بيده لئن اخذتم بالمقايسة لتحلن الحرام ولتحرمن الحلال ولكن ما بلغكم عمن حفظ من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم[۴]

حضرت شعبي رح فرمائي. چه ځان د بے دليله قياسونو نه اوساتئ. خدائ په خدائ قسم دے. چه که چرے تاسو د قياسونو نه کار واخستو نو د خدائ حرامو ته به حلال او وائے او حلالو ته به حرام او وائے. ليکن د هغه خبرو پيروي کوئ چه د صحابو نه تاسو ته رارسيدلے وي.

[۱] بخاری ج۲ ص۱۰۲۶ [۲] بخاری ج۲ ص۱۰۸۷ [۳] عمدة القاری ص۲۸۷ ج۱۱ وقال فى صحته نظر وان سلمنا فانه اراد به الرأى مع وجود النص. روضة الناظر لابن قدامة الحنبلى ص۱۳۹. اعلام الموقعين ص۱۹ ج۱ وقال اسناد هذه الآثار عن عمر فى غاية الصحة ودار قطنى ص۴۸۷ ج۲ [۴] دارمى ص۴۷ ج۱

(۵) وكان الامام ابوحنيفة رح يقول ايّاكم و آراء الرجال

امام ابوحنیفه رح به فرمایل چه د خلقو د ذاتي افکارو او خیالاتو نه ځان اوساتئ.

(۶) وكان الامام مالك رح يقول ايّاكم ورأي الرجال الا ان اتبعوا اتبعوا ما انزل اليكم وما جاء عن نبيكم [۱]

امام مالک رح به فرمایل چه د خلقو د رائے او خیال نه ځان اوساتئ. ترڅو چه کړ دوئ په یوه خبره اتفاق نه وی شوی بلکه د هغه قرآن تابعداری اوکئ کوم چه الله تعالی را لیږلے دے. او د هغه سنتو تابعداری اوکئ کوم چه د رسول د طرف نه تا رسیدلي وی.

(۷) قال نعيم بن عمر سمعت ابا حنيفة رح يقول عجبًا للناس يقولون اني افتي بالرأي وما افتي الا بالاثر

نعیم بن عمر رح وائي چه ما د امام اعظم ابوحنیفه رح نه اوریدلي دي چه فرمایل ئې. عجیبه خبره ده. چه خلق وائي چه زه په خپل عقل او رائے فتوے ورکوم. حالانکه زه بے د نقل صحیح نه فتوی نه ورکوم

یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه یا د صحابه کرام رض نه چه کوم روایت ما ته را اورسی. نو چه کوم حکم د دے روایت نه نصًا یا استنباطًا معلومیږی. زه هم د دغے حکم فتوے ورکوم. محض په آزادانه قیاس او رائے سره خو فتوی نه ورکوم. نو عجیبه خبره ده. چه خلق ځما متعلق په دے غلط فهمئے کښې ګرفتار مبتلے شوی دی؟

او یو واضحه دا نره ده چه دے فقهاؤ خپله د اجتهاد په وخت کښې د قرآن و حدیث او د آثار صحابه تحقیق او لحاظ کړے دے. بلکه په صاف الفاظو کښې ئې اعلانونه کړیدی چه کچرے ځمونږ نه پس چا ته ځمونږ د یوے فتوے متعلق دلیلِ نقلي د روایات ثابتو نه معلوم شي. او دے پرے سبب پوهه شي چه دا روایت او حدیث ځمونږ د امام د فتوے سره په هیڅ قسم موافقت نه خوري. نو دے به یدے فتوے او حکم نه کلکیږی. بلکه په حدیث به عمل کوي. یو څو حوالے پیش کیدے شي.

(۱) قال الحسن بن لؤلؤي سمعت ابا حنيفة رح يقول قولنا هذا رأى و هو احسن ما قدرنا عليه فمن جاء نا باحسن من قولنا فهو اولى بالصواب منا. [۲]

امام اعظم ابوحنیفه رح به د خپل اجتهادي قول متعلق فرمایل چه دا ځمونږ شرعي قیاس دے. او ځمونږ د علمي قوت مطابق دا بهتر قول دے. او کچرے چا ته د دے نه زیات بهتر قول معلوم شو (یعنی منصوص حکم ځکه چه مجتهد د بل قیاس تابع کوم نه شي وئیلے کما لا يخفى على الماهر في المسائل القياسية) نو هغه به ځمونږ د قول نه صحیح وي.

[۱] الميزان الكبرى للشعراني ص۵۹ ج۱ [۲] مناقب الامام الاعظم رح للمكي المتوفى بسنة ۵۶۸ ص۷۳ ج۱ [۳] المناقب للمكي ص۷۶ ج۱ [۴] ميزان الكبرى ص۵۵ ج۱ و تاريخ بغداد للخطيب البغدادي رح ص۳۵۲ ج۱۳ مصري؛

كان ابو حنيفة رح يقول حرام على من لم يعرف دليلي ان يفتي بكلامي[١]

اوهم دغه امام صاحب رح فرمايل. چه چاته څو بزد قول دليل معلوم نه وي. هغه لره صرف څو بز په خبره فتوى وركول حرام دي.

(٢) وكان الامام مالك رح اذا استنبط حكماً يقول لاصحابه انظروا فيه فانه دين وما من احد الا وما خوذ من كلامه ومردود عليه الا صاحب هذه الروضة[٢]

امام مالك رح به چه ديو مسئلے استنباط اوكه. نو خپلو شاګردانو ته به ئے ويل. چه په دے مسئله كښ تاسو هم سوچ اوكړئ. ځكه چه دا دين دے. او بغير د دغے روضے والا (رسول الله صلعم) نه د بل چا خبره قابل قبول هم كيدے شي. او قابل د رد كولو هم كيدے شي. اهـ

(٣) وكان الامام احمد بن حنبل رح يقول انظروا في امر دينكم فان التقليد لغير المعصوم مذموم[٣]

امام احمد بن حنبل رح به فرمايل. چه په ديني مسائلو كښ سه سوچ او فكر كوئ. ځكه چه بغير د نبي عليه السلام نه د بل چا بے دليله خبره منل شرعاً ناكاره خبره ده. (او د نبي ع خو محض قول دليل دى)

ليكن دا په حق د مجتهد او د هغه عالم كښ دے. چه د مجتهد د طرف نه خود لى شوى دليل باندے پوهيدے شي. اګر كه استنباط د احكامو نشي كولے. نو دے به د مجتهد د خبرے دليل معلوموي. او باقى پاتے شه امي محض نو هغه به د مجتهد او د فقيه خبره په اعتماد مني. چه اګر كه د دوى خپله خبره خو دليل نه دے. ليكن دے ماته د شريعت حكم بيانوي.

(٤) وقد ذكر البيهقي والحاكم عن الامام الشافعي رح انه كان يقول اذا صح الحديث فهو مذهبي وفي رواية اخرى اذا رأيتم كلامي يخالف كلام رسول الله صلى الله عليه وسلم فاعملوا بكلام رسول الله صلى الله عليه وسلم واضربوا بكلامي الحائط وقال للربيع رح لا تقلدني في كل ما اقول وانظر في ذلك لنفسك فانه دين[٤]

امام شافعي رح به وے. چه څه وخت يو صحيح حديث چاته معلوم شي. نو هم دغه به زما مذهب وي (په دے شرط چه تعارض ئے د بل صحيح حديث سره نوى) او بل روايت كښ داسے دي. چه څه وخت تاسو زما يوه خبره اووينئ چه د رسول الله د خبرے نه مخالف ده. نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خبره عمل كوئ. او زما خبره په ديوال او غورځوئ. يو ځل خپل شاګرد امام ربيع رح ته او فرمايل. چه زما هره خبره مه منه. بلكه ته د ځان د پاره په هغے كښ هم سوچ كوه. ځكه چه دا دين دے.

د دے درے قاعدے حاصل دا شه. چه د غير متعارض آيت يا حديث يا د قول د صحابي په

[١] الميزان ج ١ ص ٥٥ [٢] الميزان ج ١ ص ١٦ [٣] الميزان ج ١ ص ١٦ [٤] الميزان ص ١٦

مقابله کښې د مجتهد او د فقیه کامل خبره او فتوی هم قابل مقبول نده. په دې شرط چه د هغه
دلیل نقلی باندې پوره علم حاصل شی. او تطبیق په مابین د دغه دلیل او قول د مجتهد کښې
ممکن نه وی.

او په کتابونو د حنفی اصول فقه کښې چه دا ذکر شوی دی. چه د مقلد دپاره حجت او دلیل
قول او فتوی د مجتهد دی نو دا په حق د هغه عوامو کښې دی. چه هغوی په دلیل شرعی هیڅ
او که عام یې واخلی. نو بیا دا په هغه وخت کښې دی. چه د دغه قول په مقابله کښې هغه دلیل
تا ته معلوم نه وی. کوم چه په درجه کښې د قیاس او قول د مجتهد نه مخکښې وی. ځکه چه
په دې صورت کښې به غیر مجتهد د دې امام تقلید په دې حسن ظن کوی. چه دده نه به
ضرور څه دلیل معلوم وی. خو څما علم په دې ترا اوسه نه دې راغلی. نه په دې خیال چه
دا قول من حیث هو قول حجت او دلیل شرعی دی.

نو هیڅکله چه د مجتهد قول د نص په مقابله کښې نه دې معتبر نو د دغه مجتهد د مذهب
د علماؤ اقوال په څرنګه د نص په مقابله کښې حجت ګرځیدلې شی؟ او په دغه مذهب کښې د
تصنیف شوؤ کتابونو عبارات به یو عالم دین د نص غیر متعارض په مقابله کښې ګله منلې شی؟

د دې قاعدې تفصیل مو له غونډ ډیر ځکه اوکړ. چه فریق مخالف د خپلو غلطو خبرو
د پاره نفس د یو مطبوعه کتاب عبارات ډیر پیش کوی. او وائی چه چونکه مونږه خو
مقلدین یو. د دې وجه نه مونږ له حدیث وغیره ته توجه کول ضروری نه دی. اګر که
دا عبارت او قول د هغه امام نه ثابت هم نه وی. او نه د هغه د قول نه د دې قول تخریج
کیدې شی. بلکه صرف د دغې امام ته منسوب یو عالم دا خبره په خپل کتاب کښې لیکلې وی.
یا دې عالم هم په اصل کښې دا خبره نوی کړې. بلکه وروستو چا دا خبره د هغه په کتاب
کښې درج کړې وی. هر څه چه وی خو دا عبارت د کانړی کرښه او حجت قطعیه ګنړلې شی
او د دې نه علمی خلاف کوونکی غیر مقلد هم او کړ شولی شی. او وهابی هم. بلکه اکثر
خو د استنباط دا استنباط په طور باندې کفر ته هم او رسولې شی. اګر که هغه په اوچت
آواز وائی. چه اے د خدای بندګانو ما سره دا الله کتاب او د رسول الله ثابت شوی او
غیر متعارض حدیث او د امام ثابت شوی قول موجود دې. خو دې ته څوک غوږ نه
ګدی. ځکه چه هغه یو ځل د تورو ټکونه مخالفت کړې وی.

(۴) خلورمه قاعده !- مونږه د امام اعظم ابوحنیفه رح مقلدین یو. او د دوئ مذهب ناقلین شارحین او مدونین د هغوئ فیض یافته تلامذه او شاګردان دی. په دوئ کښې زیات مشهور امام محمد بن الحسن الشیبانی رح او قاضی ابویوسف رح او امام زفر رح او حضرت عبدالله بن مبارک رح وغیره دی.

د دے وجه نه مونږ به په هغه کتابونو اعتماد کوو. چه د کوم متعلق مونږ علم یا کم ازکم غالب ګمان داوی. چه په دے کښې مونږ د امام او د هغه د شاګردانو مذهب نقل کیدے شي. او د هغه نادرو او غیر معروف کتابونو باندې به مونږ اعتماد نه کوو چه د کوم دا حیثیت نه وی. سوا د هغه مسئلے نه چه په هغے باندې دلیل د ادلوو تلثو نه موجود وی. ځکه چه داسے مسئله که په دیوال باندې لیکلے شوے وی نو هم به یے مونږ منو.

مناسبه ده چه د دغے قاعدے د وضاحت د پاره د مسائلو فقهیوو او د فقهاؤ حنفیو طبقات او مراتب بیان کړے شي.

علامه محمود بن سلیمان الکفوی الرومی المتوفی سنه ۹۹۰ھ په خپل مشهور کتاب "اعلام الاخیار من فقهاء المذهب النعمان المختار" مشهور په "طبقات الحنفیه" کښې د فقهاء حنفیو پنځه طبقے بیان کړی دی.

(۱) "د امام اعظم ابوحنیفه رح د فیض یافتو تلامذو او شاګردانو طبقه" لکه امام محمد رح قاضی ابویوسف رح امام زفر رح وغیره شو. د کفوی رح عبدالوهاب شعرانی رح وغیره په نزد دا طبقه د امام صاحب نه په اصول کښې خلاف نه کوی. او په فروعات کښې خلاف کوی او د امام صاحب د اصولو او قواعدو مطابق اجتهاد او قیاس کوی. لیکن امام غزالی رح المتوفی سنه ۵۰۵ھ په خپل کتاب "المنخول" کښې فرمائی. چه دوئ ته د اجتهاد مطلق مرتبه حاصله وه. او د خپل امام د مذهب د دوو حصو نه یے خلاف کړے دے.

(۲) "د اکابرو متأخرینو طبقه" دا طبقه د خپل امام د اصولو او قواعدو په روښنائي کښې د هغه مسائلو او حوادثاتو حکم معلوملو د پاره اجتهاد کولے شي. چه د کوم متعلق د صاحب مذهب نه هیڅ روایت موجود نه وی. اصطلاحی طور باندې دوئ ته "مجتهدین فی المسائل" ویلے شي. کفوی رح په دے طبقه کښې مندرجه ذیل فقهاء شمار کړی دی.

ابوبکر الرازی الخصاف، ابوجعفر الطحاوی، ابوالحسن کرخی، شمس الائمه الحلوانی، شمس
الائمه السرخسی، فخر الاسلام بزدوی، قاضیخان وغیره. لیکن مولانا عبدالحی اللکهنوی
فرمائی. چه امام کرخی او خصاف او طحاوی مرتبه د دے طبقے نه اوچته ده. ځکه چه د
دوئ د اقوالو او کتابونو د مطالعے نه معلومیږی. چه په ډیرو مسئلو کښ دوئ د امام
صاحب نه اختلاف کړے دے. او سرخسی او حلوانی بزدوی د دے طبقے نه شمارل او
امام ابوبکر رازی جصاص په دریم طبقے کښ حسابول بالکل غیر مناسبه خبره ده. ځکه
چه دے په زمانه او فقاهت دواړو کښ د دوئ نه مقدم دے. او قاضیخان په دغه
طبقه کښ راوستل او امام قدوری او علامه مرغینانی صاحب هدایه په څلورمه
طبقه کښ شمارل خو ډیره بے مناسبه ده. ځکه چه امام قدوری د قاضیخان نه په
مرتبه کښ یقیناً ډیر زیات دے. او صاحب هدایه کچرے زیات نوی نو کم هم نه دے.

(۳) د "اصحاب التخریج طبقه" دا طبقه اګر که د اجتهاد طاقت بالکل نه لری. لیکن د
امام په اصولو او قواعدو باندے د دوئ کامله احاطه وی. د دے وجه نه د مجمل روایت
تفصیل او شرحه کولے شی. او د امام نه منقوله روایت نه تخریج د نظائرو کولے شی.
علامه کفوی په دے طبقه کښ امام ابوبکر جصاص وغیره حساب کړیدی. حالانکه
انصاف دا دے. چه جصاص د دویم طبقے دے. او قاضیخان وغیره د دے طبقے دی.

(۴) د "اصحاب الترجیح طبقه" دا طبقه د منقوله روایاتو او جزئیاتو د نقل یا د صحت
او د درایت په لحاظ د بعض روایاتو فضیلت او ترجیح بیانوی.

علامه کفوی په دے طبقه کښ امام قدوری او علامه مرغینانی صاحب هدایه
شمار کړیدی. حالانکه انصاف هم دا دے. چه د قدوری مرتبه د قاضیخان نه
مقدمه ده. او د صاحب هدایه مرتبه د ده نه یقیناً کمه نه ده.

صاحب د بحر الرائق علامه ابن نجیم مصری علامه ابن الهمام صاحب د فتح القدیر
په دے طبقه کښ حساب کړیدے. بلکه بعض علماؤ خو ده ته د اجتهاد مطلق مرتبه
ثابته کړیده.

حما په خیال کښ کچرے مجتهد مطلق نه دے. نو مجتهد فی المذهب یقیناً دے. ځکه
چه په ډیرو مسئلو کښ ده د امام صاحب د مذهب نه خلاف تحقیق کړے دے. لکه

چه د هغه د کتاب فتح القدير د مطالعه نه معلوميږي. د تفصيل موقع دا نده.

(۵) "طبقه د مقلدينو سپيتزينو" دا طبقه د قوي او د ضعيف د ظاهر مذهب او د نادر روايات په مينځ کښې فرق او امتياز کوي. يعني دوئ د مذهب په کتابونو او مسائلو پوره عبور حاصل کړې وي. د دې وجه نه د قوي او ضعيف روايت فرق کولے شي. او په خپلو تصنيفاتو کښې ضعيف روايات او مردود اقوال نه راوړي. (الا ماشاء الله) لکه شمس الائمه محمد بن عبد الستار الکردري متوفي سنه ۶۴۲ھ شاګرد د صاحب هدايه. جمال الدين حصيري شاګرد د قاضيخان. حافظ الدين نسفي صاحب د کنز يا نور اصحاب متون. لکه صاحب د وقاية الرواية شنه. کفوي فرمائي. چه دا د فقهاؤ ادني او ضعيفه مرتبه ده. ليکن چه د دوئ خکته وي. نو بالکل ناقصين دي. او د فتوي ورکولو اهل نه دي. مګر هله چه د اوچتې مرتبې والا فقيه نه په صحيح روايت حکايت او نقل کوي.

د فقه حنفي هيڅ منصف مزاج او محقق عالم پابند د اپته نه ده. چه د دې پنځو طبقو نه خکته کتاب او فقيه په قول باند فتوي ورکول صرف په دې اعتماد چه دا بر د امام قول وي جائز ندي. سوا د دې نه چه د هغه په قول دليل غير متعارض موجود وي.

علماء کرامو د مفتيان کرامو د سهولت د پاره د هغه کتابونو نشانه هم ورکړيده. چه کوم قابل اعتماد نه دي. يو څو کتابونه بطور مثال پيش کوو.

(۱) جامع الرموز شرح د مختصر الوقايه تصنيف د شمس الدين القهستاني متوفي سنه ۹۵۰ يا ۹۶۲ھ ملا علي قاري حنفي فرمائي. چه دے د شيخ الاسلام الهروي په شاګردانو کښې بالکل نه دے. او ده ته په خپله زمانه کښې چا فقيه نه وئے. او د ده کار صرف د کتابونو د الټي اوړي ورق ګرداني وو. قاري صاحب په آخر کښې فرمائي.

| | |
|---|---|
| ويؤيده انه يجمع في شرحه هذا | ده کمزوري تائيد دا دے. چه دے په خپله شرح کښې |
| بين الغث والسمين والصحيح و | صحيح او ضعيف هر څه بې د تحقيق و تدقيق نه راغونډوي |
| الضعيف من غير تحقيق و تدقيق | د ده مثال په شپه کښې د خشک ترلو نکے دے. |
| فهو کحاطب الليل الجامع بين | چه د تيرے په وجه اوچ او شنه ګډوډ |
| الرطب واليابس في الليل[1] | راغونډ وي. |

[1] رساله شم العوارض في ذم الروافض لملا علي القاري المکي رح

علامہ الشرنبلالی دَ سرو جامو دَ استعمال پہ جواز باندِ دَ ابوالمکارم او دَ قهستانی پہ قول باندِ استدلال کرید ے۔ نو ابن عابدین الشامی المتوفی سنہ ۱۱۵۲ھ دَ دہ پہ رَد کښ فرمائی چہ

لامانقلہ ابوالمکارم فانہ رجل مجهول وکتابہ کذلک والقهستانی کحاطب لیل خصوصا واستنادہ الی کتب الزاهدی المعتزلی انتهی۔ — صحیح مذهب هغہ نہ دے۔ کوم چہ ابوالمکارم نقل کرید ے ځکہ چہ دے او دَ دہ کتاب دوارہ مجهول دی۔ او خصوصاً قهستانی خو دَ شپے پہ تیارہ کښ دَ خشاک تولونکی پشان دے او دَ دہ نسبت دَ زاهدی دَ کتابونو تہ شوید ے چہ هغہ معتزلی دے۔

(۲) دَ نجم الدین الزاهدی المتوفی سنہ ۶۵۸ھ کتابونہ۔ لکہ القنیہ۔ الحاوی۔ المجتبی شرح قدوری زاد الائمہ وغیرہ۔ دے پہ اعتقادیاتو کښ معتزلی وہ۔ او پہ فروعاتو کښ حنفی۔ ابن عابدین او صاحب دَ نهر وغیرهما دَ دہ پہ حق کښ فرمائیلی دی۔ چہ څو پورے دَ دہ دَ روایت پہ بل معتمد کتاب کښ تائید نوی شوے۔ تر هغہ پورے پہ روایت دَ دہ اعتماد نشی کید ے۔

(۳) السراج الوهاج شرح القدوری دَ ابوبکر علی الحدادی المتوفی سنہ ۸۰۰ھ۔ صاحب دَ کشف الظنون دَ البرکلی نہ نقل کړے دے چہ دا کتاب قابلِ اعتماد نہ دے۔

(۴) الفتاوی الصوفیہ دَ محمد بن ایوب شاگرد دَ صاحب جامع المضمرات۔ دے هم قابل اعتبار نہ دے۔ کذا قال صاحب کشف الظنون عن البرکلی۔

(۵) الخلاصۃ الکیدانی۔ دَ دے مصنف متعین نہ دے۔ عام طور سرہ دا پہ ماوراء النهر کښی دیرہ مشهورہ شویدہ۔ او پہ دغہ علاقہ دا منسوب دہ دَ لطف اللہ النسفی تہ۔ لیکن پہ صحیح ثبوت سرہ تر او سہ پورے دَ دے مصنف نہ دے معلوم شوے۔ څوک څہ وائی او څوک څہ۔ او پہ دے کښ دیرے مسئلے دَ مسلک حنفی نہ مخالف دی۔ مثلاً اشارہ پہ وخت دَ تشهد کښی۔ چہ پہ معتمدو کتابونو کښ سنت او مستحب لیکلے شویدہ۔ او دے ورتہ حرام وائی۔ او هم دارنګ جهر بالتسمیہ او رفع یدین وغیرہ تہ دے حرام وائی۔ او خصاصی وائی چہ دَ دے قسم مسئلو نہ دَ امام شافعی سرہ څمونږ اختلاف صرف پہ اولویت کښ دے۔

تعجب دے۔ چہ څمونږ فریق مخالف پہ هغہ کتابونو دلیل نیسی۔ چہ کوم دَ دے مذکورو کتابونو نہ هم کمتر دی۔ بلکہ دَ بعضو خو دَ سرہ مصنفین ندی معلوم۔ او وائی چہ اگرچہ دا کتابونہ نادر دی۔ خو دَ ظاهر روایت نہ

---
[۱] تنقیح الفتاوی الحامدیۃ "بحث کراهۃ لبس الثوب الاحمر" ۱۲

مخالف نه دی. د دے وجه په دے زه فتویٰ ورکوم.
تا د فتوے نه څوک منع کولے شي؟ څو کم ازکم دا فتویٰ امام صاحب او حنفيو پورے
خو مه تپه. ترڅو پورے چه د دے ثبوت په معتبرو کتابونو د مذهب کښې اونکړے. یا دلیل نقلی
ورباندې پیش نه کړے.

(۵) پنځمه قاعده - چه کوم امور و اسباب او دواعی د حضورؐ او د صحابو، تابعينو
تبع تابعينو په زمانه کښې موجود وی. او بیا د دے نه دا امور او مسائل په دغے دور سعید
کښې جاری کړی شوی نوی. نو په دا سے امورو کښې روښتني علماء کرام بلکه مجتهدين هم قیاس
او اجتهاد نشي کولے. قياس او اجتهاد په هغه غیر منصوص واقعاتو کښې جاری کیږی
چه کوم د حضور صلعم په زمانه کښې رونما شوی نه وی. بلکه نوی واقعات وی. ځکه چه شارع
علیه السلام چه سره د وجود د اسبابو او دواعیو نه دا امور په اُمت کښې جاری کړی نوی
نو دا صاف د دے دلیل دے. چه دا د دین اجزاء نه دی. او نه په دے څه ثواب حاصل
کیږی. بلکه دا سے کارونو ته صرف په خپلے رائے سره عبادت ویل بدعت قبیحه دے. اګر
چه په ظاهر کښې په شکل د عبادت وی. ځکه چه عبادات قیاسی نه دی. بلکه توقیفی
دی. دا قاعده صاحب د مجالس الابرار علامه قاضی ابراهیم الحنفی المتوفی فی عهد سنة ۱۰۰۰ھ
ذکر کړے دے.[1]

(تنبیه) (ملا کاتب چلپی المتوفی سنة ۱۰۶۷ھ وائي چه د مجالس الابرار مصنف ملا احمد رومی
دے. لیکن دا د ده غلط فهمی ده. چه اصل کښې د دے مؤلف قاضی صاحب مذکور دے)

د دے وجه نه محدثينو و فقهاؤ تصریحات کړیدی. چه متابعت د رسول الله صلی الله علیه وسلم
په فعل او ترک دواړو کښې ضروری دے. یعنی کوم کار چه هغوی کړے وی. (او په هغوی پورے
خاص نه وی) نو په هغے به عمل کوي. او کوم کار چه هغوی نوی کړے (سره د وجود د باعث او
ترک نه) نو هغه به نه کوي.

ملا علی قاری الحنفی رح فرمائي.

المتابعة کما تکون فی الفعل یکون فی الترک ایضاً فمن واظب علی فعل لم یفعله — تابعداری د رسول الله په کولو او په نه کولو دواړو کښې په کیدے شي. نو څوک چه په هغه کار همیش والے کوی چه

[1] نفائس الاظهار ترجمه مجالس الابرار ص۱۲۷ ؛ [2] فوائد بهیه ص۴۹ وحاشیه التعلیقات السنیه ص۱۸ ۱۲ ؛

الشارع فهو مبتدع رح[1] — نبی کریم علیه السلام نوی کړی نو دا بدعتی دے۔

شیخ عبد الحق محدث دهلوی الحنفی رح بعینه هم دغسے عبارت په فارسی کښ د ذکر کولو نه پس فرمائی۔ چه وکذا قال المحدثون یعنی محدثینو او علماؤ د حدیث هم دغسے فرمائیلی دی[2]۔

او هم دغسے مضمون په اردو کښ مولانا قطب الدین الدهلوی الحنفی په شرح د مشکوة کښ ذکر کړی دی[3]۔ په شرح د مسند د امام ابو حنیفه رح کښ دی۔

والاتباع کما یکون فی الفعل یکون فی الترک فمن واظب علی مالم یفعله الشارع صلی الله علیه وسلم فهو مبتدع لشمول قوله علیه السلام من عمل عملا لیس علیه امرنا فهو رد[4]

تابعداری د رسول علیه السلام به په کولو او په پریخودلو دواړو کښ کیدے شی۔ نو څوک چه په داسے کار باندے همیش والے کوی۔ کوم چه نبی نه وی کړے۔ نو دے بدعتی دے۔ ځکه چه د نبی دا قول عام دے۔ چه چا داسے عمل او کړو چه څو نبرا اجازت د هغے د کولو نه وی۔ نو هغه کار مردود دے

هم د دغے قاعدے په وجه صحابو کرامو د هغه کارونو او ظاهری عبادتونو نه په ډیرے سختے سره منع کړے ده۔ چه کوم د نبی علیه السلام نه ثابت نه وی۔

حضرت حذیفه رض المتوفی سنه ۳۶ هـ فرمائی۔

کل عبادة لم یتعبد ها اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم فلا تعبدوها — کوم عبادت چه د رسول الله صلعم صحابو نه وی کړے نو تاسو ئے هم مه کوئے اه

قال ابن مسعود رض اتبعوا آثارنا ولا تبتدعوا فقد کفیتم[5] — ابن مسعود رض فرمائیلی دی۔ چه زمونږ په نقش قدم ځئی۔ او نوے نوے طریقے د عبادت مه اوباسئی اهـ

بلکه یو څو کارونه او عبادات د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه په قرآن او حدیث کښ ثابت وی۔ نو هغه به هم په هغه طریقه کیدے شی۔ کومه چه ثابته وی۔ او د ځان نه به نورے طریقے جوړولے نشی۔ او نه به په یو خاص طریقه او یو خاص وخت پورے هغه عبادت تړلے کیږی حضرت مجاهد رح فرمائی۔ چه زه او عروه بن زبیر رض دواړه یو ورځ مسجد نبوی ته لاړو۔

فاذا عبد الله بن عمر رض جالس الی حجرة عائشة رض — نو حضرت عبد الله بن عمر رض د حضرت عائشے رض حجرے پورے ناست[6]

---

[1] مرقات شرح مشکوة تحت قوله انما الاعمال بالنیات ۲ [2] اشعة اللمعات ص ۲۰ ج ۱ [3] مظاهر حق ص ۲۰ ج ۱ ۱۲ ÷
[4] المواهب اللطیفه شرح مسند ابی حنیفه رح بحث تلفظ نیت ۱۲ [5] الاعتصام للشاطبی ص ۵۳ ج ۱ ۱۲ [6] الاعتصام ص ۱۱۳ ج ۱ ÷ ÷

والناس یصلون الضحیٰ فسألناه عن صلوتهم فقال بدعة[1] — او خلقو د ساحت نمونځ کولو۔ مونږ ترینه د نمونځ متعلق تپوس اوکړه۔ نو وے فرمایل چه دا بدعت دے۔

ظاهره ده چه د ساحت نمونځ په ډیرو موقعو کښ نبی کریم علیه السلام کړیدے۔ او یقیناً سنت او مستحب دے۔ لیکن سره د دے نه ابن عمر رض ورته بدعت وائی۔ د دے وجه هم دا ده۔ چه حضرت صلعم په زمانه کښ د دے نمونځ د پاره مسجد نبوی ته د خلقو راغونډیدل او اهتمام کول نه وو۔ نو ابن عمر رض دے اهتمام او هیئت کذائی ته بدعت او وے۔

امام نووی رح فرمائی۔

مراده ان اظهارها فی المسجد والاجتماع لها هو بدعة لان اصل صلوٰة الضحیٰ بدعة[2] — د ابن عمر رض مراد دا وه۔ چه د دے نمونځ په جماعت کښ ظاهرول او د دے د پاره جمع کیدل بدعت دے۔ نه دا چه اصل نمونځ د ساحت بدعت دے۔ اه

هم په دے قاعدے بانی فقهاء کرامو ډیرے مسئلے بنا کړیدی۔ مثلاً په یو سلام باندے د شپے د اتو رکعاتو نه زیات نفل کول او د ورځے د څلورو نه زیات په اجماع د احنافو سره مکروه دی حالانکه په یو حدیث کښ هم منع نه ده راغلے۔ فقهاء کرام د دے وجه ترک د رسول علیه السلام بیانوی۔ صاحب هدایه وائی۔

ودلیل الکراهة انه علیه السلام لم یزد علی ذلک ولولا الکراهة لزاد تعلیماً للجواز[3] — دلیل د مکروه کیدو دا دے۔ چه نبی ع د دے نه زیات نه دی کړی او که چرے مکروه نوے نو د تعلیم د پاره به ئے خو بیخی زیات کړی وے اه

او ((بحر الفائق)) کښ دے کرامت ته کراهیت تحریمی ویلی دی۔ او دلیل هم دا دے۔ چه لعدم ورود الاثر چه د نبی علیه السلام نه ثابت نه دے۔ ((البدائع والصنائع)) کښ دی۔ یکره لانه لم یرو عن النبی علیه السلام۔ ځکه مکروه دی چه د نبی علیه السلام نه نقل شوی نه دی۔

هم دغه شان د صبا صادق نه پس بغیر د سنتو نه د نفل کراهیت۔ او په عید گاه کښ د اختر د نمانځه نه قبل د نفل کراهت وغیرها شو۔ د دے ټولو دلیل عدم نقل او ترک د شارع علیه السلام دے سره د وجود د باعث او د محرک نه۔ فافهم۔

(۴) شپږمه قاعده — د حدیثو هغه کتابونه چه د صحت او د شهرت اعلیٰ درجه کښ دی۔ او امت عام طور سره په دے کتابونو استدلال کوی۔ او مصنفینو ئے د صحیحو روایاتو د جمع کولو التزام

ل بخاری ص۲۳۸ ج۱ مسلم ص۴۰۹ ج۱ ؛ ۲ نووی بر مسلم ص۴۰۹ ج۱ ؛ ۳ هدایه ص۱۲۴ ج۱ ؛ ۱۲

کړې وي، او په دے التزام کښې دوئ مشهور وي. نو په داسے حدیثونو باندې د استدلال کولو نه قبل د محدث تانه تحقیق او کوشش کولو ضرورت نشته دے. بلکه د یو حدیث صرف په داسے کتابونو کښې نقل کیدل د صحت دلیل او ثبوت دے.

او کوم کتابونه د حدیثو چه داسے مرتبه نه لري. نو په دے کتابونو باندې د استدلال نه قبل تحقیق ضروري دے. لیکن په دے تحقیق کښې براه راست د راویانو حالاتو معلومولو پس څه فیصله کول شرط نه دي. بلکه د فن حدیث د هغه اماما نو چه په جرح و تعدیل کښې د هغوئ مسلک صحیح وي. او دوي د دے فن اماما ن منلے شوي وي. په فیصله باندې اعتماد کول کافي دے.

د داسے اماما نو په مثال کښې امام غزاليؒ[1] او امام ابن الهمامؒ[2] امام رازيؒ[3] او علامه تفتازانيؒ[4] ابن قدامه حنبليؒ[5] وغیره د امام بخاريؒ امام مسلمؒ امام بغويؒ علامه الصنعانيؒ وغیره پیش کړي دي[6].

لیکن هغه علماء کرام چه د هغوئ اکثر علمي ژوند د مذهب د فقهي روایاتو او جزئیاتو په استحضار کښې او د دے روایاتو او جزئیاتو نه په تخریج د مسائلو یا حمل النظائر على النظائر کښې تیر شوے وي. (او دا کار هم ډیر لوئ کار دے. جزاهم الله) لیکن په فن حدیث کښې یا د فقهي روایاتو او جزئیاتو د پاره د آثارو او احادیثو صحیحو ثابتو د تفتیش او تحقیق کښې د دوئ ډیر شغل نه وي پاتے شوے. نو د دوي په توثیق او تصحیح اعتماد نشي کیدے. او د دوي په کتابونو کښې د نقل شوي روایاتو کچرے یو امام د فن نه توثیق او تصحیح ثابت نوي. نو بیا په دے باندې استدلال کیدے نشي. چه سند ئے معلوم نشي. او د راویانو متعلق د اسماء الرجال د کتابونو په روښنائي کښې علمي تحقیق اوشي او قابل استناد ثابت شي.

ملا علي قاري الحنفيؒ د قضاء عمري د موضوعي روایت د نقل کولو نه پس فرمائي.

ثم لا عبرة بنقل صاحب النهاية ولا بقية شراح الهداية فانهم ليسوا من المحدثين ولا اسندوا الحديث الى احد من المخرجين[7]

د صاحب نهایه او د عام شراحو د هدایه په نقل روایت اعتبار نشي کیدے. ځکه چه دوئ نه محدثین دي او نه ئے بل محدث ته د حدیث نسبت کړے دے.

---

[1] او گورئ المستصفی ص۲۰۶ ج۱ - تحریر الاصول ضمن شرحه ص۲۹۳ ج۲ - شرح منهاج الوصول للاسنوی برهامش شرح تحریر الاصول ص۳۰۸ ج۳ - توضیح مصری ص۱۳۹ ج۲ - روضة الناظر لابن قدامة ص۱۹۰ - ص۵۲ تذکرت الموضوعات ۱۲

مولانا عبد الحی الحنفیؒ فرمائی. چه دَ قاری صاحب دا قول بالکل صحیح دے. ځکه دَ دے قسم فقهاء اګر که په فقهی او فرعی مسائلو کښ ماهران دی. لیکن دَ دوی نقل شده احادیثو باندِ تر هغے پورے اعتماد نشی کیدے. چه نسبت ئے امام فن ته او نکړی. او پس دَ تحقیق نه صحیح ثابت نشی. ډیر احادیث دی. چه په کتابونو دَ داسے فقهاؤ کښ ذکر شوی دی. او اصل ورلره نشته دے. لکه "لسان اهل الجنة العربية والفارسية" "من صلى خلف عالم تقى فكانما صلے خلف نبى" وغیره شو. او دَ دے وجه داده چه دَ هر فن دَ پاره رجال وی. بعض محدثین دی. چه دَ نقل دَ احادیثو صحیح و ملکه هغوئی ته حاصله ده. لیکن فقه کښ کمزوری دی. او بعض فقهاء په فقاهت کښ ماهرین دی. لیکن فن حدیث کښ کمزوری دی. او هر یو په خپل ځائی دَ دین خادم دے[1]

۱ لیکن دَ دے دا مطلب نه دے. چه په احنافو کښ حفاظ حدیث کم دی. ځکه چه په دوئ کښ داسے محدثین او ماهرین حدیث تیر شوی دی. چه مشهور اهلِ حدیث دَ هغوی دَ شاګردانو په ځای دی.

دَ حنفی فقه مرکز "کوفه عراق" وه. او دا ظاهره ده چه دا دَ علم حدیث دَ مرکزونو نه یو مرکز پاتے شوے دے. دَ ابن مسعودؓ او دَ هغه دَ شاګردانو په دے کوفه کښ څلور زره علماء حدیث تیار شوی وُو. او دَ امام بخاریؒ او احمد بن حنبلؒ شیخ عفان البصریؒ غوندِ عالِم صرف په څلور میاشتو کښ پنځوس زره ۵۰۰۰۰ احادیث لیکلی وُو[2]. نو امام اعظم ابو حنیفهؒ او دَ هغه تلامذه به څنګه په داسے مرکز حدیث کښ احادیثو ته توجه نوی کړی. علامه شبلی نعمانیؒ دَ تهذیب التهذیب. انساب سمعانیؒ مؤطا امام محمدؒ کتاب الاثار وغیره په حواله باندِ دَ امام اعظم ابو حنیفهؒ تقریباً اتیا ۸۰ پورے اساتذ حدیث نقل کریدی. چه په دوئ کښ امام زهریؒ قتاده بصریؒ امام اوزاعیؒ په شان ائمهٔ فن هم شامل دی[3].

هم دا وجه ده. چه دَ دوئ په مذهب کښ دَ دریے صد ۳۰۰ دَ نصف نه تر اوائل دَ نهم صد ۹۰۰ پورے بے شماره محدثین او شارحین و مخرجین حدیث پیدا شوی دی. مثلاً حافظ ابو البشر الدولابیؒ. امام طحاویؒ. حافظ ابو العوام السعدیؒ. حافظ ابو محمد الحارثیؒ

[1] مقدمه شرح وقایه ۱۲ [2] مقدمه فیض الباری ص ۱۲ [3] سیرة النعمان ص ۳۲

مدوّن مسند ابوحنیفهؒ. حافظ عبد الباقیؒ جصّاص رازیؒ. حافظ جمال الدین زیلعیؒ
حافظ بدرالدین العینیؒ وغیرهم. او په لسمې صدۍ (۱۰۰۰) کښې چه هر کله ممالک عربیه کښې د
حدیثو اهتمام په کمیدو شه. نو الله تعالی په هندوستان کښې د دې د پاره وسائل ذرائع
پیدا کړل. او مشهور محدّث الشیخ علی المتقی المتوفی سنه ۹۷۵ھ صاحب د "کنز العمال" شیخ عبد الوهاب
البرهانپوریؒ المتوفی سنه ۱۰۰۱ھ شیخ عبد الحق محدّث دهلویؒ المتوفی سنه ۱۰۵۲ھ شیخ محمد طاهرؒ
المتوفی سنه ۹۸۶ھ صاحب د مجمع البحار وغیره حضراتو په دې ملک کښې د حدیثو اشاعت شروع کړه
تر دې چه الله تعالی په اوائل د دولسمې صدۍ (۱۲۰۰) کښې شاه ولی الله المتوفی سنه ۱۱۷۶ھ غوندې
هستی پیدا کړه. او د دهٔ د فیض نه مشهور محدّث قاضی ثناء الله پانی پتیؒ شاه عبد العزیزؒ
شیخ محمد معین الدین السندیؒ وغیره اکابرین الله تعالی هندوستان ته ورکړل.
او هم د دغې خاندان نه شاه محمد اسمٰعیل الشهید سنه ۱۲۴۶ھ او شاه محمد اسحٰق المتوفی سنه ۱۲۶۲
الشیخ عبد الغنیؒ المتوفی سنه ۱۲۹۶ھ وغیره پیدا شو. هم د دغې شاه عبد الغنیؒ نه مولانا الشیخ
محمد قاسم النانوتویؒ بانی دار العلوم دیوبند المتوفی سنه ۱۲۹۷ھ الشیخ رشید احمد گنگوهیؒ
المتوفی سنه ۱۳۲۳ھ احادیث حاصل کړي وو. او د دې دواړو د فیض نه شیخ الهند مولانا
محمود الحسنؒ غوندې امام او محدّث پیدا شه. چه د دهٔ د فیض نه په زرګونو اساتذهٔ حدیث
په دنیا کښې خواره دي. او هم په دوی کښې الشیخ انور شاه کشمیریؒ غوندې هستی هم
دې دنیا ته اولیده.

فقه حنفی خو داسې داسې ائمهٔ فن لري. نو موږ له پکار دي. چه په خپلو نزاعی
مسئلو کښې دوی ته رجوع اوکو. نه چه نادرو نادرو تصنیفاتو ته. د فقه حنفی په لمن
کښې خو د محدثینو او فقهاؤ یو عالَم اکبر موجود دې. سه

اتزعم انك جرمٌ صغيرٌ ؛ ته گمان کوې چه ستا جُثه وړه ده ؛
وفيك انطوى العالم الاكبرُ ؛ حالانکه په تا کښې خو یو لوئ جهان پټ دې ؛

## طبقات د کتابونو د حدیث

مناسبه ده چه د کتابونو د حدیث طبقات په مختصرو الفاظو کښې بیان کړې شي. د پاره د دې
چه دا قاعده ښه واضحه شي.
شاه ولی الله محدّث دهلویؒ فرمائي. چه په اعتبار د صحت او د شهرت سره د کتبو د

[1] مقدمه فیض الباري ۱۲

حدیثو څلور مرتبې دي۔

(۱) اوله طبقه د بخاري او مسلم او د موطا امام مالک دہ۔ دا طبقه د کتابونو امت قبوله کړې دہ۔ او عام طور سره هر څوک په دې استدلال کوي۔ او مصنفینو یې التزام د صحیحو روایاتو د نقل کولو کړې دے۔ قاضي عیاض په خپل کتاب "مشارق الانوار" کښې د دے دریو کتابونو د احادیثو شرح او ضبط د مشکلاتو کړېدے۔

(۲) دویمه طبقه د هغه کتابونو دہ۔ چه هغه په شهرت او تلقي بالقبول کښې په شان د غه رومبني کتابونو خو نه دي۔ لیکن دوي ته نژدے دي۔ مصنفین یې په عدالت او حفظ کښې مشهور دي۔ او په فن حدیث کښې متبحر دي۔ د دے کتابونو روایات د تدوین نه قبل او په زمانه د تدوین کښې د کتب ثلثو په شان شهرت خو نه نو وحاصل کړے۔ لیکن د دوي وروستو په هره زمانه کښې محدثینو او فقهاؤ دا قبول کړیدي۔ او کامله توجه یې دوي ته کړے دہ۔ دا هم درے کتابونه دي۔ سنن ابوداود۔ جامع ترمذي۔ نسائي۔ امام رزین په "تجرید الصحاح" کښې او ابن الاثیر په "جامع الاصول" کښې د دے دواړو طبقو شپږو کتابونو احادیث جمع کړي دي۔ او مسند احمد بن حنبل هم دویمے طبقے ته قریب دے۔

(۳) دریمه طبقه د هغه مسانیدو جوامعو او تصنیفاتو دہ۔ چه د بخاري مسلم نه قبل یا هغوي په زمانه کښې تصنیف شوي دي۔ او په دوي کښې صحیح حسن ضعیف معروف غریب۔ شاذ۔ منکر وغیره هر قسم احادیث جمع کړي شوي دي۔ او دا کتابونه په علماؤ کښې مشهور شوي نه دي۔ اګرکه بالکل نا آشنا هم نه دي۔ او ماسوی د متاخرینو متشددینو نه متقدمینو کښې د دے کتابونو ته فقهاؤ څه خاص توجه نه ده کړے۔ بلکه د دے طبقے بعضے کتابونه داسے هم دي چه اهل لغت او ادیبانو د دے د الفاظ غریبو وضاحت هم نه دے کړے۔ او فقهاؤ د دوي تطبیق د سلف صالحینو د مسلک سره نه دے کړے۔ او محدثینو د دوي مشکلات او مؤرخینو د دوي د رجالو حالات هم نه دي بیان کړي۔ نو دا قسم کتابونه د خفا او د ګمنامۍ حالت کښې پراته دي۔ په دے طبقه کښې دا کتابونه شمارلی شوي دي۔

مسند ابو یعلی۔ مصنف عبدالرزاق۔ مصنف ابوبکر بن ابي شیبه۔ مسند عبد بن حمید۔ مسند ابوداود طیالسي۔ کتابونه د بیهقي او طحاوي او د طبراني۔ د دے حضراتو مقصد صرف د

احادیثو ذخیره جمع کول وو. او دا هم دیر لوئی خدمت دے. د احادیثو خالص راویستل او قابل د عمل گرځول د دوئ مقصد نه وه. او دا کار دوئ روستنو محدثینو او علماؤ ته پریخودلے وه.

(۴) څلورم طبقه د هغه کتابونو ده. چه په دے کښ هغه غیر معروف احادیث راغونډ شوی دی. چه د طبقه اولے او طبقه ثانی محدثینو هغه په خپلو کتابونو کښ ذکر کړی نه دی حکه چه د دوئ راویان قابل اعتماد نه وو. او اکثر دا احادیث د مبالغه آمیزو واعظانو یا د بد عتیانو او ضعیفو راویانو په ژبه جاری وُو. او هم په دغه کتابونو کښ اسرائیلی قصے آثار صحابه، اقوال تابعین یا د حکماؤ او واعظانو مقولے راغونډے شوے دی. او راویانو ئے عمدًا یا سهوًا دا د حدیث مرفوع سره خلط ملط کړی دی. د دے طبقے احادیث منډرجه ذیل کتابونو کښ موندے شی:

کتاب الضعفاء لابن حبانؒ کتاب الضعفاء لابن عدیؒ او د خطیب بغدادیؒ د ابونعیمؒ د جوزقانیؒ د ابن عساکرؒ د ابن نجارؒ او د دیلمیؒ وغیرهم کتابونه. په دے کتابونو کښ د ټولو نه اوچت او مختلف د قبول او د رد احادیث هغه دی. چه صرف د ضعف په درجه کښ وی. او د ټولو نه بدتر هغه دی چه موضوعی یا مقلوب یا اشد درجه منکر وی. علامه ابن جوزیؒ په "کتاب الموضوعات" کښ هم د دغے طبقے نه اکثر موضوعات راجمع کړی دی.

(۵) شاه صاحب فرمائی. چه د دے طبقات اربعونه علاوه د روایاتو یوه پنځمه طبقه هم ده. چه د فقهاؤ صوفیاؤ مورخینو په ژبو باندے جاری دی. او د دے مذکوره طبقات اربعوبه کتابونو کښ د دے وجود نشته دے. او بعضے هغه روایات هم په دے طبقه کښ دی. چه د عربئ بعض بے دینه ماهرانو جوړ کړیدی. او دا سے سند ئے ورله جوړ کړے وی. چه په ظاهر ورباندے جرح نشی کید ہے. او دا سے فصیح وبلیغ عبارت ئے جوړ کړے وی. چه په ظاهره په دا گمان نشی کیدے چه دا به د رسول اللهﷺ الفاظ نه وی. او دا قسم روایات یو سخت مصیبت جوړ شه. لیکن د حدیث اماماتو او فاضلانو د متابعاتو او نظائرو په ذریعه د دا سے قسم روایاتو پرده دری کړے ده.

شاه صاحب په آخر کښ د دے مذکوره طبقاتو متعلق فرق د مراتبو واضح کوی.

اما الطبقة الاولیٰ والثانیة فعلیهما اعتماد المحدثین په اولے او دویمے طبقے باندے د محدثینو اعتماد دے.

وهم حماها ومرتعهم ومسرحهم وأما الطبقة الثالثة فلا يباشرها للعمل بها والقول بها الا النحارير الجهابذة الذين يحفظون اسماء الرجال وعلل الحديث وأما الرابعة فالاشتغال بجمعها او الاستنباط منها نوع تعمق من المتاخرين وان شئت الحق فطوائف المبتدعين من الرافضة والمعتزلة وغيرهم يتمكنون بادنى عناية ان يلخصوا منها شواهد مذاهبهم فالانتصار بها غير صحيح في معارك العلماء بالحديث[۱]

او هم په دغه روایاتو دوی ډېره توجه کړېده - او په دریمه طبقه باندې عمل او فتوی ورکول د هغه ماهرینو او محققینو کار دے - چه د اسماء الرجال او د عللو د حدیث حافظان او ماهران وی - او د څلورمې طبقې احادیث جمع کول او د دوی نه د مسائلو استنباط کول د متاخرینو متشددینو کار دے - او حقه خبره خو دا ده چه بدعتی فرقې مثلاً شیعه گان معتزله وغیره د خپلو مذهبو د پاره هم د دغې طبقې نه دلائل فراهم کوی - لیکن د علماؤ په اختلافاتو کښې د دے طبقې په روایاتو باندې استدلال کول صحیح نه دے اهـ

## اوومه قاعده په بیان د طریقې د تفسیر د قرآن کریم کښې -

د قرآن کریم د تفسیر متعلق انسان آزاد نه دے - چه ده په خپله رائے او فهم سره د یو لفظ کوم معنے مناسبه او گنړله - نو هم هغې ته ئې د دے لفظ معنی او وائی.

جلال الدین السیوطیؒ فرمائی - چه بعض خلق اول په ذهن کښې یو مقصد او معنی راولی او بیا د قرآن کریم د لفظ تفسیر د هغې مطابق کوی - او بعض خلق د تفسیر د لفظ په هر هغه معنے سره کوی - چه صرف د عربے په ژبه کښې د هغې گنجائش وی - او دے ته نه گوری - چه دا معنے د متکلم د اصل مقصد یا د سیاق سباق سره مطابقه ده که نه - او آیا معانیو ماثورو سره برابره ده او که نه - او کله د یو معتمد تفسیر مثلاً ابن جریرؒ نه د یو بدعتی مفسر قول نقل کړی - او دا تفصیل او نه کړی چه په دے تفسیر کښې د دے قول په رد کښې د اهل سنت څه قول او تفسیر ذکر دے که نه - او بیا په آخر کښې فرمائی.

فان الصحابة والتابعين والائمة اذا كان لهم في الآية تفسير وجاء قوم فسروا الآية بقول آخر لاجل مذهب اعتقدوه وذلك المذهب ليس من مذاهب الصحابة والتابعين

د یو آیت په تفسیر کښې چه د صحابوؓ یا د تابعینو یا د نورو اماما نو قول موجود وی - او سړے د دے نه یو بل د خپل مذهب د اثبات د پاره د دے آیت په تفسیر کښې یو بل قول راوباسی - او دغه مذهب په صحابوؓ او تابعینو کښې د چا هم نه وی

---

[۱] حجة الله البالغة ص۲۹۶ تا ص۳۰۱ ج۱ ملاحظه کریئے - اصح المطابع کراچی

صار مشارکاً للمعتزلة وغیرهم من اهل البدع فی مثل هذا[1]

نو دا دله په دے کار کښ د معتزلو او د نورو بدعتیانو سره برابره شوه (نعوذ بالله عن مثل هذا)

حافظ سیوطیؒ المتوفی سنة ۹۱۱ھ د تفسیر او د مفسر د شروطو او آدابو په بحث کښ د تفسیر مندرجهٔ ذیل طریقے نقل کړیدی۔

(۱) "تفسیر القرآن بالقرآن" دا یوه عامه قاعده ده۔ چه یو متکلم مقرر په خپل طویل کلام کښ یوه خبره په یو مقام مجمل او مطلقه پریګدی۔ حکه چه هم دغه خبره ده په بل مقام باندے مفصل طور باندے بیان کړے وی۔ قرآن کریم هم دغه عام طریقه اختیار کړے ده۔ د دے وجه نه علماؤ دا فیصله کړے ده۔ چه کچرے د یو آیت یا د لفظ د مفهوم و منطوق متعلق اشتباه پریوځی۔ نو د دے نظائرو او امثال د په باقی قرآن کریم کښ اوکتے شی۔ او د هغه نظائرو په روښنائی کښ د د دے آیت یا د لفظ مفهوم متعین کړے شی۔

علامه ابن جوزیؒ په دے باره کښ یو مستقل تصنیف کړیدے۔ او حافظ سیوطیؒ د اتقان په شپږ څلویښتمه نوعه کښ یو څو مثالونه هم بیان کړیدی۔ مثلاً۔

(۱) فتلقی آدم من ربه کلمات کښ د دے کلمات څه بیان نشته دے۔ لیکن په بل ځائی کښ دا کلمات ښودلے شوی دی۔ یعنی ربنا ظلمنا انفسنا الآیة

(۲) واوفوا بعهدی اوف بعهدکم کښ دا عهد او وعده ښودلے شوے نه ده۔ لیکن علماء وائی چه لئن اقمتم الصلوٰة وآتیتم الزکوٰة وآمنتم برسلی الخ کښ هم دغه وعده ذکر شویده

(۳) صراط الذین انعمت علیهم کښ هغه کسان متعین شوی نه دی۔ چه په کوم باندے الله مهربانی کړیده۔ لیکن په اولئک الذین انعم الله علیهم من النبیین الخ کښ د دوی تفصیل موجود دے۔

(۲) "تفسیر القرآن بالسنة المرفوعة" دویم طریقه داده۔ چه د زیر تحقیق آیت او لفظ په باره کښ د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرفوع قول یا فعل و تقریر تلاش اوکړے شی۔

(۳) "تفسیر القرآن بالاقوال الثابتة عن الصحابة رضوان الله علیهم اجمعین" کچرے مرفوع روایت ثابت نه شی۔ نو بیا به د صحابه کرامو د اقوال ثابتو تفتیش کولے شی۔

امام احمد بن حنبلؒ او صاحب د مستدرک الحاکمؒ په علوم الحدیث کښ او نورو محدثینو او فقهاؤ تصریح کړیده۔ چه د صحابو هغه اقوال

[1] الاتقان فی علوم القرآن ص ۱۷۸ ج ۲ مصری

چه ډاسې خبرو متعلق منقول وی. چه په عقل واجتهاد نه معلومیږی. نو هغه په حکم د حدیث مرفوع کښې دی. او که د دې قسم متعلق نه وی. نو دا به د صحابی اجتهاد وی. لیکن دا اجتهاد به د باقیو مجتهدینو د اجتهاد نه مقدم او غوره گڼړلے شی.

په صحابو کښې مشهور مفسرینِ قرآن لس کسه تیر شوی دی. خلفاء اربعه رض ابن مسعود ابن عباس رض ابی بن کعب رض زید بن ثابت رض. ابو موسیٰ اشعری رض. عبدالله بن زبیر رض.

لیکن په دې ټولو کښې ډیر مشهور او ماهر حضرت عبد الله بن عباس رض دے. رسول الله صلی الله علیه وسلم ده ته د "ترجمان القرآن" نوم ورکړے دے. او یو ځل حضرت جبریل ع حضور ع ته فرمائیلی وو. چه دے "حبر الامة" دے. دا دے د ابن مسعود نه شپږ دیرش کاله ورستو هم ژوندے وو.

ابن عباس رض ته د تفسیر په باره کښې ډیر اسانید رسیدلی دی. او مختلف او وگړو اوگړو قصے هم ده ته منسوب دی. مگر په دې ټولو کښې هغه سند بهتر او زیات قابل اعتماد دے. کوم چه د ابن ابی طلحه رح المتوفی سنة ۱۳۲ھ په واسطه ابن عباس رض ته رسیدلے دے. او هم په دے باندے امام بخاری رح په خپل صحیح کښې اعتماد کړے دے. او هم په دغه سند د ابن ابی طلحه رح سره په دیرو واسطو باندے ابن جریر الطبری رح او ابن ابی حاتم رح ابن المنذر رح وغیره د ابن عباس رض نه تفسیری روایات نقل کړیدی.

او دویمه درجه کښې د ضحاک رح المتوفی سنة ۱۰۵ھ او د نافع بن الازرق رح سنة ۶۵ھ سند دے. حافظ سیوطی رح په دے درسے واړه سند و باندے منقوله تفسیری کلمات الاتقان کښې نقل کړیدی. او دریم درجه کښې د امام بخاری وغیره هغه تفسیرونه دی چه د باقیو ائمه د تفسیر نه یے نقل کړی دی.

(۴) "تفسیر القرآن بالاقوال الثابتة عن التابعین". کچرے د صحابو صحیح او ثابت قول هم نه وی. نو بیا اکثر علماء وائی. چه د تابعینو د اقوالِ ثابتو تحقیق پکار دے. په دے طبقه کښې بے شماره مفسرین تیر شوی دی. مثلاً مجاهد رح سعید بن جبیر رح عکرمه رح مولیٰ ابن عباس رض عطاء بن ابی رباح رح حسن بصری رح م سنة ۱۱۰ھ مسروق بن الاجدع رح سعید بن المسیب رح ابو العالیه رح م سنة ۹۰ھ ربیع رح قتاده رح ضحاک بن مزاحم رح وغیره.

لیکن په دے ټولو کښې زیات قابل اعتماد د مکے مکرمے مفسرین دی. ځکه چه دا د ترجمان القرآن

درسګاه وه. مثلاً مجاهدؒ عطاءؒ عکرمهؒ سعید بن جبیرؒ طاؤسؒ. او په دوی کښی بیا حضرت مجاهدؒ ډیره بلنده مرتبه لری. دے وائی چه ما د ابن عباسؓ نه دیرش ځله قرآن کریم ویلے دے. امام نوویؒ وائی چه کله چرے تاته د مجاهدؒ تفسیر په صحیح سند سره معلوم شی. نو بل طرف ته توجه مه کوه. د دے وجه نه امام شافعیؒ او امام بخاریؒ هم د ده په تفسیری کلماتو اعتماد کړیدے.

او دویم نمبر کښی د کوفے مفسرین کرام دی. چه د ابن مسعودؓ درسګاه وه. او په دے طبقه کښی زید بن اسلمؒ مشهور او معتمد دے.

امام سیوطیؒ فرمائی. چه د تابعینو د طبقے نه پس ډیرو مفسرینو د صحابو او د تابعینو د روایاتو مطابق تفسیرونه مدون کړل. مګر د ابن جریر طبریؒ تفسیر په دے باره کښی یو جامع مکمل تفسیر دے.

(۵) "تفسیر القرآن باللغة العربیة الفصحیٰ" کله چرے د تابعینو نه هم په سند صحیح سره د زیر تحقیق آیت تفسیر او تشریح منقول نه وی. نو بیا به د عربو د فصحاؤ په کلام کښی د غور او فکر نه پس داسے معنی کولے شی. چه د سیاق و سباق او غرض مسوق له الکلام سره موافق وی یا کم از کم مخالف نه وی. او په دے باره کښی د معتبرو شاعرانو او خطیبانو د عرب اقوال قابل اعتماد دی.

ابن الانباریؒ فرمائی. چه د صحابو او د تابعینو نه د قرآن کریم د نا آشناو الفاظو د وضاحت د پاره په اشعارو باندی احتجاج ثابت دے. ابن عباسؓ فرمائی.

الشعر دیوان العرب فاذا خفی علینا الحرف — شعر د عربو دیوان دے. نو هر وخت چه په موږ باندے
من القرآن الذی انزله الله بلغة العرب — د قرآن کریم چه په ژبه د عربو کښی نازل شویدے د یو
رجعنا الی دیوانها فالتمسنا معرفة ذلک فیه — کلمے معنی مشتبه شی. نو موږ به ئے دیوان کښی د هغے طلب کوو. او

معلومه شوه. چه د قرآن کریم په تفسیر کښی مطلق د "روح البیان" یا د یو بل کتاب قول حجت نه دے. تر څو چه په دے پنځو طریقو سره د هغے معنی اثبات نوی شوے.[1]

(تنبیه) بعض کسان داوائی. چه اصل په نصوص کښی عموم دے. د دے وجه نه کله چرے د صحابو، تابعینو او ائمو نه د یو لفظ یوه معنی منقوله وی. نو دا د دے تقاضی نه کوی چه د دے لفظ د لغت وغیره په روشنائی کښی بله معنی کول جائز نه دی. لکه حافظ صاحب:

[1] الاتقان ص۱۳۱ ج۱ - دا ټول تفصیل مو د دے کتابونو نه خلاصه کړیدے - الاتقان ص۱۳۱ ج۱ ص۱۷۵ ج۲ و ص۱۷۶ و ۱۷۸ و ۱۸۴ و ص۱۸۸ و ص۱۹۰ - والفوز الکبیر للشاه ولی الله ص۳۰ و ترجمه اصول تفسیر لابن تیمیهؒ ص۹۲ تا ص۱۰۳ د ۱۰۳

وئیلی دی. چہ لفظ دَ وسیلے عام دے: عمل صالح او ذوات فضلو تہ. لیکن دا حضرات یا خو دَ دے قاعدے پہ مطلب نہ پوهیږی. یا تجاهل کوی. پہ اصل کښ دَ دے مطلب صرف دا دے. چہ هر کلہ چہ دے مذکورہ طریقو سرہ دَ یو آیت یا دَ یو لفظ یو مفهوم و منطوق متعین شی. نو دا مفهوم چہ پہ څہ شئ صادق وی. پہ هغے باندِ بہ دَ دے آیت حکم نافذ کیږی. مثلاً هم دَ دغے وسیلے چہ کوم معنیٰ او مفهوم ثابت شی. نو دا بہ عام وی. دا مطلب نہ دے. چہ منقول خو یوه معنیٰ وی. او تہ وکړه بلہ معنیٰ کورے. او وائیے. چہ دا جز دی. ځکہ چہ اصل پہ الفاظو او نصوصو کښ عموم دے.

حافظ صاحب! دَ قرآن کریم دَ تفسیر دَ طریقو متعلق ہم دا تفصیل صرف دَ دے دَ پارہ ذکر کړو. چہ آئندہ دَ پارہ ستا پشان بل څوک صرف تورے کرښے څو نہ خلاف پہ طور دَ حجت پیش نہ کړی. ځکہ چہ دا مذکورہ تفصیل دَ اهل سُنّت حقائق دی. ؎

ان مسائل میں ہے کچھ ژرف نگاہی درکار ⁂ یہ حقائق ہیں تماشائے لب بام نہیں ⁂

لیکن شاید حافظ صاحب دَ دے حقائقو نہ ځان پرے خلاص کړی چہ ؎

دریا کو اپنی موج کی طغیانیوں سے کام ⁂ کشتی کسی کی پار ہو یا درمیاں رہے ⁂

# فصلِ اوّل پہ بیان دَ حقیقت دَ توسّل او دَ اقسامو دَ هغہ کښ

حافظ صاحب "فصل اول پہ اثبات دَ توسُّل" دَ عنوان ما تحت فرمائی.

"زده کړه دا خبره چہ توسُّل مطلقاً ثابت دے پہ دے آیت کریمہ سره چہ "یا ایها الذین آمنوا اتقوا الله وابتغوا الیہ الوسیلة"

لیکن افسوس دے. چہ دوئ دَ توسل پوره حقیقت او انواع ندی بیان کړی. پہ حاشیہ کښ چہ څہ معمولی او مخلوط غوندے تفصیل کړے دے. دَ هغے حاصل دا دے.

(۱) سوال "پہ حق" دَ صالحینو سره جائز دے.

(۲) او وئیل چہ "دا کار اوکړه" یا "اے بابا تہ ماتہ ولد او څوئ راکړه" جائز دی. او دا نسبت مجازاً دے. لکہ جبریلؑ فرمائیلی وو. انما انا رسول ربك لاهب لك.

(۳) کہ ولی یا نبی تہ دا سے او وائی چہ. تہ ما دَ پاره دعا اوکړه. نو دا هم جائز دی. ځکہ چہ دعا دَ میّت پہ اختیار کښ ده. او دعا دَ امور دَ آخرت نہ ده.

## د حافظ صاحب دلائل

د دے مقاصدِ ثلاثو د پاره مندرجۂ ذیل دلائل بیان کړی شوی دی.

(۱) وابتغوا الیہ الوسیلة حافظ صاحب فرمائی چه په دے کښ "عمل صالح" او "ذوات فاضله" دواړه داخل دی. او مفسرین هم دغه وائی. او د تولو مفسرینو د نمایندګئ د پاره ئے صرف د روح البیان دا عبارت ذکر کړے دے "الوسیلة علماء الحقیقة ومشائخ الطریقة" ج۱ ص۵۶.

(۲) ولو انهم اذ ظلموا انفسهم جاءوک فاستغفروا الله واستغفر لهم الرسول. فرمائی. ځکه چه د عاصی راتلل او بیا استغفار د نبی ﷺ هغه لره دا توسل دے. (لیکن د دے وضاحت کولو تکلیف ئے نه دے کړے چه دا توسل بالدعاء دے که توسل بالذات) او په د دے آیت سره ئے پس د وفات د پیغمبر ﷺ نه جواز د توسل هم ثابت کړے دے.

(۳) حدیث د اعمیٰ. د دے حدیث متعلق د صاحب موصوف محدثانه او فاضلانه تحقیق هم دومره قدر دے. چه واخرج البخاری فی تاریخه معنی توجهت استعنت بک انتهی.

(۴) د حضرت عمر رض په زمانه کښ د قحط په وخت کښ استسقاء او توسل بالعباس رض. دلته هم د دے "محدثِ کبیر" د توسل د نوعیت وضاحت ضروری "یا د خپل مقصد د پاره مفید" نه دے ګڼړلے. او د تحقیق صرف دا "جوهر پاره" ئے ذکر کړو. چه ګان داخل دے په نتوسل مضارع باندے. نو معلوم شوه. چه د دوی عادت داوه. چه توسل به ئے نیولو.

(۵) اعرابی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د قحط شکایت اوکړو او دا شعر ئے او وے.

ولیس لنا الا الیک فرارنا ؛ واین فرار الناس الا الی الرسل:

نو حضور ﷺ منبر ته اوختو او سوال ئے اوکړو. چه اللّٰهم اسقنا الحدیث (ای خدایه باران اوکړے)

(۶) توسل وړاندے د وجود د نبی کریم صلعم نه هم جائز دے. ځکه چه اهل کتاب به توسل کولو په مشرکانو باندے په نبی صلی الله علیه وسلم سره او دعا به ئے کوله.

"اللّٰهم انصرنا بالنبی المبعوث فی اٰخر الزمان" (خازن. مدارک) او په "فتح الرحمٰن فی ترجمة القراٰن" کښ ذکر کړیدی. "ان یهود خیبر کانوا قبل خلقه استفتحوا الله وقالوا وانصرنا بالنبی الموعود فی اٰخر الزمان" لا انتهی بلفظ المؤلف)

(۷) توسل د اٰدم ع په حق د محمد صلعم سره. (الحاکم فی مستدرکه)

(۸) په "مدارک" او "مواهب" کښ د "استغفر لهم الرسول" د لاندے دا واقعه ذکر کړے ده چه

یو اعرابي دَ حضورﷺ دَ روضې خاورې مبارکې په سر اولګولې او اوې وې یا رسول الله ما دَپاره دُعا اوغواړه. نو دَ روضې نه آواز راغې چه تا ته خدای مغفرت اوکړه.

(۹) حضرت عائشې رضی دَ قحط په زمانه کښې خلقو ته اووې. چه دَ حضورﷺ دَ روضې او دَ آسمان په مینځ کښې دریچه پرېګدئ. چنانچه هغوئ دا کار اوکړه. او باران اوشه. او دې کال ته عام الفتق وائي.

(۱۰) دَ تُستر دَ علاقې خلقو به په دانیال علیه السلام باندې د باران وغیره دَپاره توسل نیوۀ.

(۱۱) نبي علیه السلام په فقراء مهاجرینو باندې توسل نیولے دے: یتوسل بصعالیک المهاجرین

(۱۲) مجالس سنیه کښې دي. عن ابن عباس رضی قال تأتی النار کل عام الی المدینة فشکی المسلمون الی عمر رضی فقال لغلامه خذ هذه الرداء فاذا جاءت النار فقل یا نار هذا رداء عمر رضی ففعل ورجعت فی الحال ولم تعد. وایضا اتت زلزلة عظیمة فی زمان عمر رضی فضرب عمر الارض بدرته وقال اسکنی انا عدل فسکنت اھ

(۱۳) اذا تحیرتم فی الامور فاستعینوا من اهل القبور.

(۱۴) په طریقه محمدیه او دَ هغې په شرح بریقه کښې دا عبارت دے. یجوز التوسل و الاستعانة بالانبیاء والصالحین بعد موتهم لان المعجزة والکرامة لاینقطعان بالموت ولاینکر الکرامة بعد الموت الا الرافضی والولی فی الدنیا کالسیف فی الغمد فاذا مات تجرد عنه فیکون اقوی تصرفا. (ص۲۰۳ ج۱)

(۱۵) شیخ عبد الحق رح فرمائي. من یستمد فی حیاته یستمد بعد مماته قال الشافعی رح قبر موسی الکاظم تریاق مجرب.

(۱۶) په مقدمه دَ شامي کښې دي. چه امام شافعي رح به توسل په ابو حنیفه قدس سره کاوو.

(۱۷) شامي جلد دویم کتاب الآبق کښې دي. اذا انفلتت دابة احدکم فلیصل رکعتین ولیقرأ الفاتحة فلیقل یا سیدی احمد بن علوان ان لم ترد علی ضالتی لانزعنک من دیوان الاولیاء و هذا مجرب.

دَ دې "ناقابل تردید او عالمانه" دلائلو نه بعد "علامه موصوف" دَ روح البیان په حواله وائي. چه شفاعت او توسل په یو معنی دی. او منکر دَ توسل په شان دَ شیطان دے. او بیا نصیحت کوي چه پس ته فکر اوکړه چه ګمراه نشې.

داوه دَ مصنف دَ توسل مطلق دَ اثبات دَ پاره ټوله سرمایه[۱]۔
په دے مزعومه دلائلو به څما تبصره هله صحیح طور بانډ ذهن نشین کیږی۔
چه زه دَ توسل اوَ هغه دَ اقسامو متعلق خپل نقطهٔ نظر واضح کړم۔

## مفهوم دَ توسُّل

لفظ دَ "توسُّل" ماخوذ دے دَ "وَسِیلَةٌ" نه۔ اوَ دَ وسیلے عامه او متعارفه معنیٰ په لغت دَ عربو کښ "قُرب" نزدیکت دے۔ اُنیف بن زبان النبهانی وائی۔

ولَمّا عَصِینا سیُوفًا تقطّعت ؛ هرکله چه مونږ توره په لاس کښ واخستے۔ نو
وَسَائِلُ کَانَتْ قبلُ سِلمًا حِبالُهَا[۱] ؛ صحیح او سالم قرابتونه اوخپلولے اوشلیدے۔

"قتیله بنت نضر بن الحارث" دَ خپل پلار په مرثیه کښ وائی۔

والنَّضرُ أقرَبُ مَنْ أَصَبْتَ وَسِیلَةً ؛ څما پلار نضر تا ته ډیر نزدے دے۔ دَ جهته دَ قرابت نه
وَأَحَقُّهُمْ إِنْ کَانَ عِتقٌ یُعتَقُ[۲] ؛ او دے دَ ټولو نه زیات حقدار دے۔ چه دَ ده په هو نو کړے غلام آزاد کړے

لیکن دا لفظ دَ وسیلے په محاوراتو کښ په اِسمی معنیٰ کښ هم مستعمليږی۔ یعنی مایتوسل به الی الشئ هر هغه شئ چه یو بل شئ ته ذریعه دَ قرب گرځولے شی۔ دَ دے مفهوم په اعتبار سره دَ "توسُّل" معنیٰ "طلبُ القرب" ده۔ لکه چه "منتهی الارب" کښ دی

توسل نزدیکی جستن بچیزے و بکارے۔ توسُّل په یو څیز یا په یو کار سره نزدیکت لټول۔ مثلاً
یقال توسل الیه بوسیلة ای عمل عملاً ویلے کیږی۔ توسل الیه بوسیلة یعنی دا سے کار ئے اوکړ
تقرّب به الیه، وکارے کردن که بدان ، چه دَ هغے په وجه دے فلانی ته نزدے شه۔ او دا سے
نزدیکی و تقرُّب دست دهد[۳]۔ کار کول چه دَ هغے په وجه قرب حاصليږی۔

## دَ وسیلے اَقسام

دَ وسیلے څلور[۴] قسمه دی۔ اوَ دَ هر یو تفصیل مند رجه ذیل دے
(۱) "وسیلهٔ قربِ نجات" دَ قرآن و حدیث او دَ تواتر دَ امت نه دا خبره په واضح طور بانډ ثابته ده۔ چه وسیله دَ قرب و نجاة صرف ایمان او عمل صالح دے۔ یعنی هغه ذریعه چه په هغے بانډ انسان دَ الله ته قرب او محبت حاصلوی اوَ دوزخ دَ عذاب نه پرِ نجات مومی۔ صرف ایمان او عمل صالح دے۔ په دے خبره[۵] دَ قرآن کریم بے شماره آیتونه او دَ رسول الله صلعم ډیر احادیث دلالت کوی۔

---

[۱] حماسه ص۲۹ مطبوعه مکتبه سلفیه لاهور [۲] حماسه ص۱۲۷ باب المراثی [۳] منتهی الارب ص۱۳۰۰ ج۴۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۝
(البقرة ع ٢٧ آیت ٢١٨)

بے شک هغه کسان چه ایمان ئے راوړے وی او هغه کسان چه هجرة ئے کړے وی. او د خدائی په لار کښې ئے جهاد کړے وی. هم دغه کسان د رحمت الهی امید ساتی. او الله تعالی بخونکے او مهربان دے.

وَالْعَصْرِ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ۝

زمانه په دے گواه ده - چه انسان په تاوان کښې دے سوی د هغه کسانو نه چه ایمان ئے راوړے وی. او عمل صالح ئے کړے وی. او یو بل ته ئے د دین او د صبر نصیحت کړے وی

ان اباهریرة رض قال قام رسول الله صلی الله علیه وسلم حین انزل الله وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ قال یا معشر قریش اشتروا انفسکم لا اغنی عنکم من الله شیئا یا بنی عبد مناف لا اغنی عنکم من الله شیئا یا عباس بن عبد المطلب لا اغنی عنک من الله شیئا یا صفیة عمة رسول الله لا اغنی عنک من الله شیئا یا فاطمة بنت محمد سلینی ما شئت من مالی لا اغنی عنک شیئا [1]

ابو هریره رض فرمائی - چه هر کله الله تعالی وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ نازل کړ - نو رسول الله صلعم اودریدو - او وئے فرمایل چه اے قریشو په ایمان او عمل سره د خپل ځان د خلاصی غم اوکړئ - زه تاسو د الله د عذاب نه نشم خلاصولے - اے خاندانه د عبد مناف - زه تاسو د عذاب الهی نه نشم خلاصولے - ای عباس بن عبد المطلب او ځما ترور صفیئے زه تاسو د عذاب الهی نه نشم خلاصولے - اے ځما لور فاطمے رض زه چه د کوم مال مالک یم - د هغے نه چه څومره دې په کار دی - ځانه او غواړه خو زه تا د عذاب الهی نه نشم خلاصولے -

د دے قسم آیات او احادیث ډیر دی. چه واضح طور باندې په دے دلالت کوی. چه د الله قرب او د عذاب الهی نه نجات صرف په ایمان او عمل صالح باندې حاصلیږی او هم د دغے وسیلے د طلب کولو حکم الله تعالی د سورة مائدے په هغه آیت کښې کړیدے کوم چه د فریق مخالف مشهور او مایه ناز دلیل دے.

یا ایها الذین امنوا اتقوا الله وابتغوا الیه الوسیلة وجاهدوا فی سبیله لعلکم تفلحون ۝

اے مسلمانانو د خدائی نه اویریږئ او الله ته د نزدیکت ذریعه اولټوئ (چه نیک عمل او ایمان دے) او د خدائی په لار کښې جهاد اوکړئ - چه رضا د خدائی حاصل کړئ.

[1] بخاری ص ۷۰۲ ج ۲ و مسلم ص ۱۱۴ ج ۱ و مسند احمد ص ۳۳۳ ج ۲ و ابو عوانه ص ۹۳ ج ۱ ۱۲

## دَ آیتِ وسیله تفسیر

دَ ټولو نه اول مونږ دَ لفظِ "وسیله" دَ مفهوم و منطوق دَ پاره دَ دے په سیاق وسباق کښې سوچ کوُو. دا ایت دَ سورة مائده دَ شپږم رکوع ۶ ابتدائی ایت دے. دَ دے نه قبل دَ یهودو او دَ اهلِ کتاب دَ قبائحو یوه سلسله ده. چه په هغے کښې یو قبیح او خرابے صرف پدے خبره فخر کول او په نورو خلقو باندِ دَ فضیلت دعویٰ کول وو. چه مونږ دَ انبیاء علیهم السلام اولادیو. یعنی صرف په صاحبزاده والی باندے فخر کول. لکه چه الله تعٰ فرمائی.

وقالت الیهودُ والنصاریٰ نحنُ ابناءُ الله واحباءهٗ (آیت ۱۸) یهود او نصاریٰ دا دعویٰ کوی. چه مونږ دَ الله تعٰ دَ خامنو په شان یو. او دَ هغه دوستان یو. (ځکه چه دَ پیغمبرانو اولادیو)

دَ دے نه بعد الله تعالیٰ دَ دے دعویٰ تردید کوی. چه تاسو صرف په صاحبزادګئ ما ته نزدے کیدے نشئ. بلکه په اتباع دَ حق نزدے کیدے شئ. او اوس ستاسو دَ قرب او دَ نجات وسیله صرف دَ هغه رسول اتّباع ده. کوم چه پس دَ عیسےٰ علیه السلام نه تاسو ته رالیږلے شوید. (محمدؐ ع ایت ۱۹) او بیا په رکوع ۴ کښې ورته وائی. چه کوم وخت ستاسو مشرانو ته هرکله چه موسیٰ علیه السلام دَ جبارینِ شام سره دَ جهاد کولو حکم اوکړ. او دوی انکار او مخالفت اوکړ. نو سره دَ دے نه چه دوی صاحبزادګان وُو. الله تعٰ څلویښت کاله په دوی باندِ عذاب راوست. چه حیران او پریشان ګرځیدل.

نو معلومه شوه. چه دَ عذاب نه دَ خلاصی او دَ الله تعٰ دَ قرب وسیله او ذریعه ذوات فاضله ندی. ځکه چه دَ ذوات فاضله سره خودَ دوی تعلق وه. خو چه دَ دے ذوات فاضلو دَ تابعدارئ نه ئے روګردانی اوکړله. نو په عذاب کښې ګرفتار شو. او دَ الله تعالیٰ دَ قرب په ځائ دَ هغه په قهر او غضب اخته شو.

او بیا دوئ ته په نظیر او مثال کښې په رکوع ۵ کښې دَ آدمؑ دَ حقیقی ځامنو واقعه بیان کړیده. چه هابیل دَ خپل اخلاص او عمل صالح په وجه مقبولینو او مقربینو کښې حساب شه. او قابیل په خپلے نافرمانئ او فساد سره با وجود دَ دے نه چه دَ آدم علیه السلام خپل ځوئ وه. (تاسو خو دَ پیغمبرانو حقیقی ځامن نه ئے بلکه نواسی ئے) مردود شه.

او بیا الله تعٰ دَ قابیل دَ دغه فساد په مناسبت په بعض امورو دَ فساد او دَ هغے دَ سزا ګانو ذکر کړے دے. مثلاً بدمعاشی او دَ خلقو نه دَ مال آغستو دَ پاره په لار کښې کیناستل یعنی شوکه

کول او دَ غلٰ سزا شوه. او دَ شوکما رو او دَ غلو دُ سزا گانو دُ بیان په مینځ کښ الله تعٰ مؤمنانو

ته فرمائی. چه دَ خدائی نه اویریږئ. او هغه ته دُ نزدیکت ذریعه اولټوئ. او وروسته

فرمائی. چه کافرانو ته به په ورځ دَ قیامت سخته سزا ورکولے شی. ځکه چه دوئ

سره به دا وسیله موجوده نوی.

هر منصف او فهیم انسان ته دَ دے سیاق سباق نه دا واضح ده. چه په دے آیت کښ

دُ "وسیلے" نه مراد ذوات فاضله او صالحین هرگز نه دی. ځکه چه دَ کلام سلسله دراصل

هم دَ هغے وسیلے په تردید کښ ده. چه دَ کومے دعوی اهلِ کتاب کړے وه.

نو دَ دے "الوسیله" نه ذوات فاضله مراد ول دَ هغے غرض او مقصد نه بالکل مخالف

دے. چه دَ کوم دَ پاره دا سلسله کلام راالیږلے شوے ده. یعنی "نفی دَ کیدو دَ ذوات فاضلو

وسیله دَ قرب او دَ نجات". (دَ ارشاد وسیله ذواتِ فاضله یقیناً دی.)

دا خو دَ ربطُ الآیات تقریر وه. اوس دَ ربطُ الکلمات تقریر واوریځ.

دَ "وابتغوا الیه الوسیلة" نه قبل دَ ایمان او دَ تقوی (دَ گناهونو او دَ شرک نه ځان ساتل)

حکم دے. او دَ دے نه بعد دَ جهاد فی سبیل الله حکم دے. نو دَ دے نه هم صاف معلوم

شوه. چه دَ وسیلے نه مراد عمل صالح دے. ځکه چه دَ دے نه دَ ذوات فاضلو مراد

کولو په وجه دَ کلماتو ربط ته نقصان رسیږی. "کما لا یخفیٰ علی اللبیب".

## دَ وسیلے تفسیر دَ صحابو او دَ تابعینو نه

دَ قرآن کریم دَ تفسیر دَ طریقو

بیان کښ دا ذکر شویدی. چه

بهترین تفسیر بیں دَ تابعینُ دَ دَوْر نه دَ محمد بن جریر الطبری تفسیر دے. او دَ دے

تفسیر خلاصه دَ حافظ عماد الدین اسمٰعیل بن کثیر القرشی الدمشقی المتوفی سنته ۷۷۴ھ

تفسیر "ابن کثیر" دے. نو مناسبه ده. چه دَ دے آیت دَ وسیلے تفسیر دَ صحابو او تابعینو

نه چه حافظ مذکور ذکر کړے دے. هغه نقل کړے شی.

| | |
|---|---|
| یقول تعالیٰ امراً عباده المؤمنین | الله تعٰ خپلو مؤمنانو بندگانو ته دَ "تقوی" امر کوی. او |
| بتقواه وهی اذا قرنت بطاعته کان | لفظ دَ "تقوی" چه دَ طاعت سره یوځائے ذکر کړے شی. نو |
| المراد بها الانکفاف عن المحارم و | دَ دے نه مراد دَ حرامو نه ځان ساتل او دَ منع کړی شوی کارونو |
| ترک المنهیات وقد قال بعدها | پریخودل وی. او دَ تقوی دَ حکم نه پس الله تعالیٰ فرمائی. |

وابتغوا اليه الوسيلة قال سفيانؒ عن طلحةؒ عن عطاءؒ عن ابن عباسؓ اي "القربة" وكذا قال مجاهدؒ وابو وائلؒ والحسن البصريؒ وقتادةؒ وعبد الله بن كثيرؒ وابن زيدؒ وغير واحد

وقال قتادةؒ اي تقربوا اليه بطاعته والعمل بما يرضيه

وقرء ابن زيدؒ اولئك الذين يدعون يبتغون الى ربهم الوسيلة

وهذا الذي قاله هؤلاء الائمة لاخلاف بين المفسرين فيه

وانشد عليه ابن جريرؒ قول الشاعر

اذا غفل الواشون عدنا لوصلنا ٭ وعاد التصافي بيننا والوسائل ٭

وقوله "وجاهدوا في سبيله" لما امر بترك المحارم وفعل الطاعات امرهم بقتال الاعداء من الكفار والمشركين الخارجين عن الطريق المستقيم والتاركين للدين القويم۔

وابتغوا اليه الوسيلة۔ امام سفيانؒ دَ حضرت طلحهؒ نه او دے دَ حضرت عطاءؒ نه او دے دَ حضرت ابن عباسؓ نه نقل کوی۔ چه مطلب دا دے۔ چه طلب اوکړئ دَ الله قرب او۔ نزديکت او دا رنګے مطلب حضرت مجاهدؒ ابو وائلؒ حسن بصريؒ قتادهؒ عبد الله بن کثيرؒ او ابن زيدؒ او نورو ډيرو تابعينو او مفسرينؒ بيا کړيدے۔ امام قتادهؒ دا معنیٰ په دے الفاظو کړيده۔ چه ځان نزدے کړئ الله تعالیٰ ته دَ هغه په تابعدارئ او دَ هغه کارونو په کولو چه هغه پرے راضی کيږی او ابن زيدؒ دَ خپل قول په تائيد کښ دَ سورة بنی اسرائيل دا آيت لوستے دے۔ چه اولئک الخ۔ او دا کوم تفسير دَ وسيلے چه دَے امامانو کړيدے۔ په دے کښ دَ مفسرينؒ څه خلاف نشته دے امام ابن جريرؒ دَ دغه معنیٰ دَ تائيد دَ پاره دا شعر لوستے دے هغه وخت چه چغل مار دَ چغلے نه غافله شی۔ نو مونږ به خپل تعلق تازه اوکړو۔ او خوږ صفائی او خپلولے به بيرته را ادګرځی او بيا فرمائی۔ وجاهدوا في سبيله هر کله چه دَ حرامو دَ پريښودو او دَ عباداتو دَ کولو امر اوکړه۔ نو ورپسے ئے دَ دشمنو دَ اسلام سره دَ جهاد او دَ جنګ کولو حکم اوکړه۔ چه کفار او مشرکان او پريښودونکی دَ صحيح دين ......

دی ۔ اھ

حافظ صاحب! او ناظرين کرام! دَ لفظ "وسيله" معنیٰ او منطوق تاسو دَ "حبر الامة" ترجمان القرآن حضرت ابن عباسؓ نه او دَ اکابر تابعينو نه خصوصاً دَ ترجمان القرآن په شاګردانو کښ دَ امام مجاهدؒ نه او دَ ابن مسعودؓ په شاګردانو کښ دَ زيد بن اسلمؒ دَ ځوئ نه واوريده۔ او امام ابن جريرؒ هم دَ دغے تفسير دَ مزيد توثيق دَ پاره چه کوم شعر لوستے وه۔ هغه هم تاسو اولوست۔ او دَ ابن عباسؓ او دَ مذکوره تابعينؒ مکمل اسانيد که ځوک معلومول غواړی۔ نو تفسير ابن جرير دِ اوګوری ؎ تفسير ابن کثير ص ۵۲ و ۵۳ ج ۲ ۱۲

؎ يعنی اے مشرکانو کوم کسان چه تاسو دَ مصيبت په وخت کښ بلئ هغوی پخپله دَ الله دَ نزديکت طلب کوی ۱۲

لیکن باوجود دَدے نه حافظ کفایت الله صاحب مولېزته ارشاد کوی۔ چه مفسرین
دے نه ذوات فاضله هم مراد کړیږی۔ او په مثال کښې دَ طبقه اولیٰ (صحابه کرام)
وَدَ طبقه ثانیه (تابعین عظام) اوډ طبقه ثالثه (مدوّن تفسیرونه ابن جریرؒ وغیره)
یو تفسیرنوم هم نه اخلی۔ اونه په متأخرینو کښې دیو کتاب ذکر کوی۔ او که کوی۔
صوف دَ "روح البیان" ذکر کوی۔ شاید دَ دوی په خیال کښې روح البیان دَ دے
لو مفسرینو مختار کل دے۔ او با اختیار نمائنده۔ چه دے څه وائی نو هغه به دَ دوی
ول گنڑلے شی۔ اگر که دَ هغوی قول دَ دے نه علاوه وی۔ کیرے صورت حال هم
اوی نو

ے کوئی بتائے کہ ہم بتائیں کیا؟

ضرورت خو نشته مگر دَ حافظ صاحب دَ مزید تسلے دَ پاره دَ متأخرینو یو څو حوالے
یش کوم۔ چه دا ثابته شی چه دَ طبقا تو ثلاثو دَ اقوال مطابق متأخرینو هم دَ
عنی کړے ده۔ امام محی السنة ابو محمد الحسین الفراء البغوی المتوفی سنه ۵۱۶ھ فرمائی

وابتغوا اطلبوا الیه الوسیلة ای القربة
فعیلة من توسّل الی فلان بکذا ای
تقرّب الیه۔[1]

یعنی دَ الله تعالیٰ دَ قرب او نزدیکت طلب اوکړی۔ او دا
معنیٰ دَ دے محاورے سره مطابقه ده۔ چه توسل الیه بکذا اے
تقرب الیه اھ

صاحب دَ "کشف الظنون" وائی چه البغویؒ په خپل تفسیر کښې دَ صحابو تابعینو
و نورو ائمو نه بالاسناد تفسیرونه نقل کړی دی۔

الامام محی السنة علاؤ الدین علی بن محمد البغدادی المعروف بخازن المتوفی سنه فرمائی۔

وابتغوا الیه الوسیلة یعنی واطلبوا
الیه القرب بطاعته والعمل بمایرضی
وانما قلنا ذلک لان جمیع التکالیف
محصورة فی نوعین لا ثالث لهما
احد النوعین ترک المنهیات والیه الاشارة
بقوله واتقوا الله والثانی التقرب الی
الله تعالیٰ بالطاعات والیه الاشارة بقوله

دَ وابتغوا الیه الوسیلة مطلب دا دے۔ چه دَ الله دَ قرب او دَ
نزدیکت حاصلولو دَ پاره دَ هغه تابعداری اوکړی۔ او هغه
کارونه کوئ۔ چه هغه پرېښو خوشحالیږی۔ او موږ دا معنیٰ ځکه
اوکړه۔ چه ټول احکام دوه قسمه دی۔ یو دَ ناروا څیزونو پریښودل
دی۔ او دیته اشاره ده په دے قول کښې چه واتقوا الله
او دویم خدای پاک ته خان نزدے کول دی۔ دَ هغه په
تابعداری سره۔ او دے ته اشاره ده په دے قول سره

[1] معالم التنزیل برخازن ص ۳۹ ج ۲ ط ۱۲

و ابتغوا الیه الوسیلة .[1] چہ وابتغوا الیہ الوسیلة .

جلال الدین السیوطیؒ المتوفی سنة ۹۱۱ھ فرمائی .

وابتغوا الیہ الوسیلة مایقربکم الیہ من طاعتہ[2] . طلب اوکړئ د هغه څیز چه الله تعالیٰ ته پرِ نژدے کیږئ چه هغه فرمان برداری د الله تعالیٰ ده اه

حافظ صاحب به زر اعتراض اوکی . چه دا خو قول شافعیؒ مذهب واله دی . نو د حنفی مذهب دیو بهترین مفسر قول پیش کوم .

حافظ الدین علامه عبد الله النسفیؒ (چه په حنفی فقهاؤ کښې بهترین فقیه دے او د ده بل تصنیف کنز الدقائق یو متداول کتاب دے . او په هغه متون کښې دے شامل دے . چه نقل د مذهب کوی .) فرمائی .

هی کل مایتوسل به ای یتقرب من قرابة او صنیعة او غیر ذلک فاستعیرت لمایتوسل به الی الله تعالیٰ من فعل الطاعات وترک السیئات[3] . وسیله اصل کښې ذریعے د قرب ته وائی . که خپلولی وی او که څه کار کول وی یا بل څه وی . او بیا الفاظ عبادت کولو او د گناهو نو د پرېخودلو د پاره استعمال شوے دے اه .

حاصل دا دے . چه د قرب او نجات وسیله ایمان او عمل صالح دے . نو "حافظ صاحب"، که عام کول غواړی . نو دا هغے د خپلو تولو مصادیق او جزئیاتو ته عام کړی . یعنی کوم شی چه د عمل صالح په تعریف کښې راشی . که عمل ظاهری وی که عمل باطنی وی . هغے ته د وسیله د قرب و نجات او وائی . نسه

چشم مارو شن و دل ماشاد ؛ موږ ته په سر و ستر گو منظور دے . مثلاً دا مے د او وائی . چه محبت د صالحینو سره سائل . او نچرے ژوندے وی . نو د هغوی خدمت کول . بلکه صرف د هغوی په مجلس کښې کیناستل . د هغوی د دین خبرے زده کول . او د دین کوم خبرے چه موږ ته هغوی او خائی . یا نچیله د دین په کارونو کښې کوم کارونه چه کوی . په هغوی کښې د دوی په نقش قدم تلل . په شرعی طریقه زیارت ته تلل . او د هغوی په حق کښې دعا کول . او د قبرونو د شریعت مطابق احترام او ادب کول . یعنی د پاسه پرے نه کیناستل او خپے ورباندے نه کیخودل .

[1] لباب التاویل المعروف بخازن ج۲ ص۳۹

[2] جلالین ص۹۹ ؛ [3] مدارک ج۱ ص۲۸۳ جا مصری ۱۲ سے دا ترجمه په هغه تقدیر ده چه نسخه صنیعة وی او که ضیعة وی نو معنی به ئے مال سامان ده ۱۲ کاتب

اوکړے د شرعي مقدار مطابق قبروی۔ اوپوخ هم نوی۔ نو په خپل حال پریخودل
وغیره تول اعمال صالحه په دے وسیله کښی داخل دی۔ اوشوک چه تخصیص یے یوځا من
عمل صالح پورے کوی نو دلیل دِ پیش کړی۔ نو مونږ ته څه اعتراض نشته۔ ځکه چه
داخو دَ اهل سنت والجماعت دَ مذهب ترجمانی ده۔ چه اصل په نصوص کښی عموم دے۔
حافظ صاحب! دَ آیتِ وسیله په تفصیل وتفسیر کښی ډیر نکات نور هم شته دے لیکن

انډے کے پیش تو گفتم وغم دِل ترسیدم : لکه غوندې م ستا په دربار کښی پیش که۔ اوډیر یرم چه
کہ دِل آزرده شوی ورنه سخن بسیاست : خفه به شے۔ ورنه خبره لا اوګده ده۔

لهٰذا تاته دا مشوره درکوم چه دَ قرآن کریم دَ تفسیر نه قبل ځان لِلّٰه اوتله۔ چه
طاقت دِ خومره دے۔

ٹھوکریں مت کھائیے چلئے سنبھل کر دیکھ کر :
چال سب چلتے ہیں لیکن بنده پرو دیکھ کر :

لفظِ "وَسِیلَه" په سورۃ بنی اسرائیل کښی هم په دے معنی دَ قرب اودَ نزدیکت
کښی استعمال شوے دے۔ نو دَ تفسیر دَ اولِ طریقے یعنی "تفسیر القرآن بالقرآن"
تقاضی هم دا ده۔ چه مراد دَ وسیلے نه په آیت دَ مائدے کښی هم دغه قرب دے۔
آیت دَ بنی اسرائیل دا دے۔

قل ادعوا الذین زعمتم من دونه — اووایه چه او بلیٔ هغه چا لره چه تاسو ورته اختیارمند
فلا یملکون کشف الضر عنکم ولا تحویلا — وایئ۔ نو هغوئ نه دَ مصیبت دَ لرے کولو اختیار لری۔ او
اولٓئک الذین یدعون یبتغون الی — نه یے دَ بدلولو۔ بلکه هغه کسان چه دا مشرکان یے په وخت دَ سختئ کښ
ربهم الوسیلة ایهم اقرب ویرجون — بلی۔ پخپله رب ته دَ نزدیکت وسیله لټوی۔ چه په دوئ کښی کوم یو
رحمته ویخافون عذابه ان عذاب ربک — الله ته ډیر نزدے دے۔ اودوئ دَ خپل رب دَ رحمت امید وار دی
کان محذورا (بنی اسرائیل ع ۶ آیت ۵۷) — او دَ عذاب نه یے یره کوی۔ بیشکه عذاب دَ الله تعالیٰ دَ یرے دے

دَ جنات نه به دَ مشرکانو یو ډلے امداد غوښتلو او کله به چه یو خوشی ځنګل کښی
دوئ سفر کولو۔ نو دَ جناتو دَ رئیس پناه به یے غوښتله۔ او دَ هغه په نوم به یے نذرونیاز
ورکوو۔ او چه نبی کریم علیه السلام پیریانو ته تبلیغ شروع کړ۔ نو دَ جناتو یو ډله مسلمان
شوه۔ او عقیدتمند وبه هغه شان دوئ نه امداد غوښته۔ او را بلل به یے۔ نو الله تعالیٰ

دا مذکوره آیت په دے باره کښ نازل کړ[1]. چه تاسو چه کوم جناتو ته آوازونه کوئ. او هغوی ترینه غواړئ. هغوئ په خپله مسلمانان شوید ی. او د اسلام په تابعدارئ سره خپل رب ته ځان نزدے کوی. او تاسو هغه شان ورته آوازونه کوئ.

تاسوله خو بکار دی. چه دوئ رب ته د نزدیکت کوم وسیله (اسلام) لټولے ده. هم هغه وسیله تاسو هم اولټوئ. او مسلمانان شئ. او د اسلام په تابعدارئ سره ځان الله تعالیٰ ته نزدے کړئ. او په وخت د سختئ کښ صرف الله تعالیٰ ته فریاد او زاری کوئ.

## وسیلهٔ ارشاد

چونکه وسیله د قرب و نجات صرف ایمان او عمل و عبادت دے او عقل انسانی په امورِ د تقرب یعنی د عباداتو معلومولو کښ مستقل نه دے. د دے وجه نه مومن ته د عباداتو او د امورو د تقرب د معلومولو د پاره د وسیلے د ارشاد ضرورت دے. او دا وسیله بنیادی طور باندے خو انبیاء علیهم السلام دی. چه په هغوئ باندے وحی کیږی. او دوئ دا وحی مخلوق ته رسوی. او د عبادت چل ورته خودئ. او د انبیاء علیهم السلام د نائبانو او خلیفګانو په حیثیت باندے علماء ربانیین او مشائخ عاملین رحمهم الله هم وسائل د ارشاد دی. او امت ته د دے بله وسیله بغیر د دے نه نشته دے. چه په هغے سره دوئ د الله تعالیٰ د نزدیکت کارونه معلوم کړی.

د دے وجه نه الله تعالیٰ د انبیاء علیهم السلام مطلق او د علماء کرامو او د مشائخ عظامو د نیکئ په کارونو کښ اطاعت او تابعداری لازمه کړے ده.

اولئک الذین هدی هم الله فبهدٰ هم اقتده. — دا پیغمبران هغه دی. چه دوئ ته خدائ صحیح لار خودلے ده. نو ته د دوئ د دغه لارے تابعداری کوه. ا م

اطیعوا الله و اطیعوا الرسول واولی الامر منکم. — د الله او د رسول تابعداری کوئ او د با اختیار و خلقو (حکامو او د فقهاؤ) تابعداری کوئ.

دا آیت اګرکه په حق د امراء جیش او د حاکمانِ وقت کښ نازل شوید ے. لیکن مفسرینو په دے کښ علماء او فقهاء هم داخل کړیدی. ځکه چه دوئ هم د دین په کارونو کښ د معلمینو او مرشدینو په حیثیت با اختیار دی. بلکه حاکمان او امراء هم په وخت د ضرورت کښ د دوئ نه مشوره اخلی.

---

[1] بخاری شریف ص ۶۸۵ ج ۲ و مستدرک حاکم ص ۳۶۲ ج ۲ ؛ ؛

علی بن ابی طلحہؒ دَ عبد اللہ بن عباسؓ نہ نقل کړے دے چہ

"واولی الامر" یعنی اهل الفقه والدین قال مجاهدؒ وعطاءؒ والحسن البصریؒ وابو العالیةؒ یعنی العلماء[1]۔

دَ اولی الامر نہ مراد فقہاء او دینداره خلق دی۔ او مجاهدؒ عطاءؒ حسن بصریؒ ابو العالیةؒ وائی۔ چہ دَ دوی نہ مراد علماء دی۔

علامہ قسطلانیؒ فرمائی۔

ای ذوی الامر وهم الخلفاء الراشدون ومن سلک طریقتهم فی رعایة العدل ویدرج فیهم القضاة وامراء السریة امر الله الناس بطاعتهم بعد امرهم بالعدل تنبیهًا علی ان وجوب طاعتهم ما داموا علی الحق[2]۔

یعنی دَ اولی الامر نہ مراد با اختیاره خلق دے۔ او دا خلفاء راشدین او هغه کسان دی۔ چہ دَ دوی په طریقه روان وی۔ او په دوی کښ قاضیان او امراء لشکر دواړه داخل دی۔ اللہ دَ دوی دَ تابعدارئ خلقو ته حکم پس دَ حکم بالعدل نہ کړے دے۔ چہ معلومه شی چہ دَ دوی تابعداری ترهغه ضروری ده۔ چہ په حق خبره کلکه وی

امام رازیؒ فرمائی۔

واولی امر منکم ای اهل الحل والعقد من الامة[3]

دَ اولی الامر نہ مراد دَ امت ترونکی او پرانستونکی دی۔

حافظ ابن کثیرؒ فرمائی۔

والظاهر والله اعلم انها عامة فی کل اولی الامر من الامراء والعلماء[4]۔

ظاهره دا ده چہ دا آیت امراء او علماء دَ دواړو ته شامل دے او بنه علم او حقیقت خدای ته واضح دے۔

خلاصہ دا ده چہ دا خبره بالکل واضح ده۔ چہ انبیاء علیهم السلام او علماء ربانیین و مشائخ عاملین مونږ ته دَ دین لارخودونکی دی۔ او وسائل دَ ارشاد دی۔

وگوره دَ صاحب دَ روح البیان کوم عبارت چہ حافظ صاحب نقل کړے دے۔ مطلب دا وی۔ نو سه

چشم ما روشن ودل ما شاد؛ لیکن دا مطلب دَ آیت دَ سورۂ مائده نه نه معلومیږی بلکہ دَ دے آیت او دَ نورو دلائلو نه ثابتیږی۔ فافهم۔

وسیلۂ حلِ مشکلات { دَ دنیوی مشکلاتو او مصیبتونو ظاهری وسائل دنیوی اسباب دی۔ دا دُنیا عالم اسباب دے

[1] ابن کثیر ص۵۱۸ ج۱؛ [2] حاشیہ بخاری ص۶۵۹ ج۲؛ [3] تفسیر کبیر ص۳۵۸ ج۳ [4] ابن کثیر ص۵۱۸ ج۱؛

او پېردې کښې انسان ته چه څومره مشکلات پېش کېږي. الله تعالی ورته د هغې د ځرنه سبب او وسیله هم پیدا کړې ده. لیکن چونکه انسان ته قوة خالقه او تکوینیه حاصل نه دے د دے وجې نه د مشکلاتو د حل اسباب فراهم کول د ده په اختیار کښې نه دي. بلکه په دې کښې دے الله ته محتاج دے. او که چرې اسباب فراهم هم شي نو بیا هم د دے احتیاج نه نه خلاصیږي. ځکه چه اسباب په خپله مؤثر نه دي. بلکه تاثیر پیدا کونکے صرف الله تعالی دے. د دے وجې نه پس د موجودګۍ د اسبابو نه انسان دې ته محتاج دے چه الله پکښې اثر پیدا کړي.

بهرحال انسان فقیر محض دے. او الله تعالی غني محض دے. نو په دې دنیا کښې دا سے یو آخري وسیله او ذریعه پکار ده. چه په وخت د مصیبتونو او د مشکلاتو کښې مصیبت زده انسان هغې ته رجوع کوي.

**دعاء مسئله** د قرآن کریم او د سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم او د تعامل د امت نه دا معلومیږي. چه دا آخري وسیله او ذریعه د خالق حقیقي چه هم ورقف بادشاه دے. په دربار کښې د دعا او فریاد وسوال کول دي. چونکه د عبادت اصلي جوهر تذلل او فروتني ده. یعني دا چه عبادت کونکے ځان بالکل عاجز او بے اختیار او ګڼړي. او معبود مالک د قدرت کامله او با اختیار او ګڼړي. او دا عاجزي او فقیري په دعا او فریاد کښې په کامل طریقے سره موجود ده. د دے وجې نه دعا (غا ئبانه) یو کامل عبادت شمیر. او الله په دے ډیر زیات خوشحالیږي. چه یو مصیبت زده انسان صرف ده ته متوجه شي. او په دے ډیر خفه کیږي. چه دے د رب نه سوال نه کوي. یا بل چانه فریاد کوي. او غائبانه آواز د نه کوي.

وقال ربکم ادعوني استجب لکم ط ستاسو رب وائي چه ماته فریاد کوئ زه به ستاسو دعا ان الذين يستكبرون عن عبادتي او فریاد قبول کوم. بے شک کوم کسان چه ما ته دعا او فریاد کول نه سيدخلون جهنم داخرين (المومن ۲۳) ځان لوئي ګڼړي هغوي به عنقریب د ذلت سره جهنم ته داخلیږي

په دے آیت شریف کښې الله تعالی د دعا نه تعبیر په عبادت سره کړے دے. یعني په قرینه د ادعوني سره یې د عبادتي نه دعا مراد دے. او دا تفسیر بعینه په حدیث مرفوع سره هم ثابت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو ځل دعا ته بعینه عبادت او وئے. او په

استدلال او تائید کښې هم دغه مذکوره آیت تلاوت کړو۔

عن نعمان بن بشیرؓ قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم "الدعاء هو العبادة" ثم قرأ وقال ربکم ادعونی الایة[۱]

نعمان بن بشیرؓ وائی۔ چه نبی رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمایل چه دعا یعنې عبادت دے۔ او بیا دا آیت ئے اولوستلو چه وقال ربکم ادعونی الایة

عن ابی هریرةؓ قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من لم یدع الله عزوجل غضب علیه[۲]

ابو هریرهؓ وائی چه نبیؐ فرمائیلی دی۔ چه څوک د الله نه سوال نه کوی نو الله تعالیٰ په دے خفه کیږی۔

حضرت سفیان ثوریؒ به فرمایل چه ای هغه ذات مقدس چه تاته په خپلو بندګانو کښې ډیر نزدے هغه کسان دی۔ چه تا نه سوال کوی۔ او په دوئ کښې ستا نه ډیر لرے هغه خلق دے۔ چه ستا په دربار کښې دعا او فریاد نه کوی۔ او ستا د ذات نه علاوه داسے بل څوک نشته دے۔ شاعر وائی سه

اللهُ یَغْضَبُ اِنْ تَرَکْتَ سُؤَالَهٗ ؛ الله تعالیٰ په دے خفه کیږی چه ته د هغه نه سوال نه کوے

وَبُنَیُّ اٰدَمَ حِیْنَ یُسْئَلُ یَغْضَبُ ؛ او بنی آدم په دے خفه کیږی چه څوک تری نه سوال اوکړی۔

بل ځائی کښې الله تعالیٰ هم دغے ته ترغیب ورکوی او فرمائی۔

واذا سئلك عبادی عنی فانی قریب اجیب دعوة الداع اذا دعان فلیستجیبوا لی ولیؤمنوا بی لعلهم یرشدون ٥ (بقرہ پارہ ۲)

چه بندګان چه تا نه زما متعلق تپوس اوکړی نو ورته او وایه چه زه تاسو ته نزدے یم۔ او دعا کونکی چه څه وخت زما نه سوال کوی نو زه ئے قبلوم۔ نو دوی د زما حکمونو او منی او په ما دې ایمان راوړی چه سمه لار بیا مومی

## ھ سبے د الله نه بل څوک د غائبانه بللو لائق نه دے ھ

چونکه الله تعالیٰ مخلوق ته نزدے دے۔ او هر وخت حاضر ناظر دے۔ او تمام مخلوق ته علی الاعلان وائی چه راشئ زما نه څه او غواړئ۔ او نه صرف دا چه اعلان کوی۔ بلکه که څوک د هغه نه سوال نه کوی۔ نو هغه په دے خفه کیږی۔ د دے وجه نه بغیر د الله تعالیٰ نه په وخت د مصیبت کښې د بل چا ته غائبانه آواز کول رپه دے عقیده چه دے زما آواز او فریاد د لرے او

[۱] ترمذی شریف ص۲۲۹ ج۲ و ابوداود ص۲۰۸ ج۱ و ابن ماجه ص۲۸۰ و طیالسی ص۱۰۸ الادب المفرد ص۹۴ و مستدرک ص۴۹۱ ج۱ وقال الحاکم والذهبی صحیح وقال الترمذی حسن صحیح: ۱۲ [۲] ابن کثیر ص۱۵۰ ج۲ بحواله احمد و ترغیب ج ۲ و ابن ماجه ص۲۸۰

نزدے نہ اوری۔ او دہ تہ اللہ تعالیٰ دا طاقت ورکڑیدے۔ چہ دے نفع او نقصان رسولے شی اگر کہ مړوی) شرک فی الدعاء دے۔ او دا قسم دُعا چونکہ عبادت دے۔ نو دا په حقیقت کښ د اللہ تعالیٰ په عبادت کښ بل څوک شریک کول دی۔ او اللہ په دے ډیر خفہ کیږی۔ او په قرآن کریم کښ د دے قسم دُعا او نداء نہ منع شویده۔ او ځائی په ځائی دا هم بیان شوی دی۔ چہ بے د اللہ نہ څوک داسے نشتہ چہ هغہ د مصیبت زده فریاد، آواز غائبانه طور یاند آوری او څم امداد کولے شی۔ یو څو آیتونه بطور مثال دا دی۔

(۱) وَاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ۝ وَّاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا ۝ قُلْ اِنَّمَآ اَدْعُوْا رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِهٖٓ اَحَدًا ۝ (الجن ع پ)

او مسجدونه د دے حکم شوے چہ جماعتونه د خدائے دی۔ په دے کښ د اللہ سره بل چا ته فریاد نه او آواز د غائبانه امر کوئے۔ او دا چه کله د اللہ تعالیٰ بنده او درید چه بلی خدائی لره نو دوی وو باندے راپنډ شی۔ او دایه زه خو صرف یو اللہ بلم۔ او په دے کښ د ده سره بل څوک نه شریک کوم۔

یعنی بلنه د بل چا خو په هر ځائی کښ منع ده۔ لیکن د اللہ تعالیٰ په کورونو کښ چه صرف د هغه د عبادت د پاره جوړ شویدی۔ بے د هغه نه بل چا ته فریاد کول ډیره زیاته بده خبره ده۔ لکه ډیر پیر پرستان په جماتونو کښ د نیکانو خلقو د نومونو ورد او وظیفه کوی۔ او په دے ورد کښ غیر اللہ ته غائبانه نداء او آواز کوی۔ مثلاً یا شیخ عبد القادر شیئاً للہ وغیره۔ او هم دغه طریقه د یهودو او د نصاری وه۔ چه په خپلو گرجو کښ به داخل شول نو د اللہ تعالیٰ سره به ئے د هغه په حقونو کښ انبیاء کرام او صالحین هم شریکول۔

ابن کثیرؒ د دے آیت هم دغه مطلب بیان کړیدے۔ او شاه عبد القادرؒ او حضرت علامه عثمانیؒ وغیره هم دغه مطلب بیان کړیدے۔ نو معلومه شوه چه په وخت د تکلیفونو کښ بل چا ته غائبانه آوازونه کول منع دی۔

(۲) وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَاِنْ فَعَلْتَ فَاِنَّكَ اِذًا مِّنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝ (یونس ع پ)

په وخت د مصیبت او حاجت کښ بل څوک مه بله چه نه تا ته نفع رسولے شی او نه ضرر۔ او که بالفرض تا داکار اوکه نو ته به هم په دغه وخت کښ د ظالمانو نه شے او۔

یعنی اگر که ته خو د شرکی بلنے بلکه د گناه صغیره نه هم معصوم او پاک ئے۔ لیکن بالفرض کچرے ته په وخت د سختئ کښ بل چا ته فریاد غائبانه (یعنی مړو او غائبینو ته) اوکے

نو ته به هم دَ ظالِمانو او شرک کونکو نه شے. نو ستا نه خکته خلق به په دے بلنے دَ شرک نه خرنګه بچ شی؟

ظلم په اصل کښ (وضع الشئ فی غیر محله) دَ چا حق تلفئے ته وائی. او دعا غائبانه صرف دَ خدائ حق دے. ځکه چه دا عبادت بلکه مغز دَ عبادت دے. نو دا حق بل چا ته ورکول دَ الله تعالیٰ حق تلفی ده او ظلم عظیم دے. اِنَّ الشِّرْکَ لَظُلْمٌ عَظِیْمٌ ۝

(۳) اِنَّ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ لَنْ یَّخْلُقُوْا ذُبَابًا وَّلَوِ اجْتَمَعُوْا لَہٗ (الحج پ ۱۷ ع ۱۰)

بے شک هغه کسان چه تاسو ئے بلئ سوا دَ الله تعالیٰ نه دوئ هرګز هیچ قدرت هم نشی جوړولے. اګر که ټول وربانده راغونډ شی. ا ه

په دے آیت کښ الله تعالیٰ او فرمایل چه په وخت دَ سختئ کښ مافوق الاسباب طور بانده دَ بلنے لائق هغه څوک وی. چه خالق وی. او تکوینی قدرت لری.

(۴) قُلِ ادْعُوا الَّذِیْنَ زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰہِ ج لَا یَمْلِکُوْنَ مِثْقَالَ ذَرَّۃٍ فِی السَّمٰوٰتِ وَلَا فِی الْاَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِیْهِمَا مِنْ شِرْکٍ وَّمَا لَہٗ مِنْهُمْ مِّنْ ظَهِیْرٍ ۝ (السبا پ ۲۲ ع ۲)

دے مشرکانو ته او وایه چه او بلئ هغه کسان چه تاسو ورته سوا دَ الله نه کارسازان او اختیارمند وائے. دوئ دَ آسمان او دَ زمکے په کارونو کښ دَ ذرے قدر اختیار نه لری. او نشته دوئ لره په دے زمکه آسمان کښ څه حصه او شراکت. او نشته الله لره دَ دوئ نه څوک امداد دی.

(۵) قُلْ اَفَرَءَیْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ اِنْ اَرَادَنِیَ اللّٰہُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ کٰشِفٰتُ ضُرِّہٖٓ اَوْ اَرَادَنِیْ بِرَحْمَۃٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِکٰتُ رَحْمَتِہٖ ط قُلْ حَسْبِیَ اللّٰہُ عَلَیْهِ یَتَوَکَّلُ الْمُتَوَکِّلُوْنَ ۝ (زمر پ ۲۴ ع ۴)

او وایه چه تاسو کوم کسان بلئے دَ دوئ متعلق لږ سوچ او کړئ. چه که چرے الله تعالیٰ ما ته تکلیف او ضرر رسول غواړی. نو آیا دوئ دا ضرر لرے کولے شی؟ او که په ما خه مهربانی کول غواړی. نو آیا دوئ ئے بند ولے شی؟ او وایه ما ته الله تعالیٰ کافی دے. او هم پکا اعتماد کوی

په دے آیتونو کښ الله تعالےٰ دا او فرمایل چه دَ غائبانه بلنے لائق هم هغه څوک کیدے شی چه دَ چا په لاس کښ څه اختیار وی. او نفع او ضرر رسولے شی. او مشرکانو دَ غه هم دغه عقیده په حق دَ صالحینو کښ لرله. چه دوئ ته الله تعالیٰ اختیار ورکړے دے. او په عطائی قدرت سره دوئ نفع نقصان رسولے شی. او هم په دغه عقیده سره به دوئ صالحینو ته په وخت دَ سختئ کښ آوازونه او فریادونه کول. او دائے او ئے شرک وه

(۶) ومن اَضَلُّ ممن یدعُوا من دون الله من لایستجیب له الی یوم القیٰمۃ و هم عن دعائهم غافِلُون (احقاف ع پ۲۶)

څوک به وی ډیر ګمراه او کم عقل د هغه چا نه چه بلی هغه چا لره چه جواب نشی ورکولے ده ته تر قیامته پوری او هغوی د دوی د دعا نه بے خبره دی۔

(۷) ان تدعوهم لایسمعوا دعاءکم ولو سَمِعُوا ما استجابُوا لکم ویوم القیٰمۃ یکفرون بشرککم ولاینبئک مثلُ خبیر (فاطر ع پ۲۲)

که چرے او بلئ تاسو دوی لره نو نه آوری ستاسو بلنه او که بالفرض واوری نو جواب نشی ورکولے تاسو ته او په ورځ د قیامت کښی به ستاسو د دغه شرکی بلنے نه هغوی انکاریان وی۔ او باخبر باشاه په شان خبر هم څوک در کولے نشی

په دے آیتونو کښی الله دا اووئے۔ چه د بلنے لائق خو هغه څوک کیدے شی۔ چه بغیر د اسبابو نه آوازونه او فریادونه اوریدے شی۔ او جواب هم ورکولے شی یعنی دعاګانے قبولولے هم شی۔ او دا مشرکان چه کوم نیکانو بندګانو ته آوازونه کوی۔ هغوی غالبًا طور باندے د دوی آوازونه هم نشی آوریدے۔ او دوی ته څه جواب هم نشی ورکولے۔ بلکه په ورځ د قیامت کښی به صاف طور باندے ستاسو د دغے بلنے نه د لاعلمی اظهار او کی او او به وائی چه مونږ خو ستاسو د بلنے نه خبر هم نه وُو۔ تاسو په حقیقت کښی د شیطن په لمسه دا بلنه کوله۔ نو دا بلنه په اصل کښی د شیطان وه۔ نه د مونږه۔ او نه دا مونږ تعلیم وه۔ چه تاسو مونږ په وخت د مصیبت کښی بلئے۔

عن ابن عباسؓ قال کنتُ خلف رسول الله صلی الله علیه وسلم یومًا فقال یا غلام احفظ الله یحفظك احفظ الله تجدهُ تجاهك واذا سألت فاسئل الله واذا استعنت فاستعن بالله[1]

ابن عباسؓ فرمائیلی دی چه زه یوه ورځ د رسول الله صلعم نه وروستو سور وم نو هغوی ما او فرمائیل چه ای بچو ربه د الله تعد احکامو پابندی کوه نو تا به د هر قسم مصیبت نه اوساتی۔ او بیا به موے ته هغه لره مخامخ۔ چه امداد غواړے نو صرف د الله نه غواړه اغانت غواړه۔

د دے حدیث راویان مندرجه ذیل دی۔ او هر یو د دوی نه ثقه او معتمد عند المحدثین دی۔

(۱) ابو خلیفه جمحی فضل بن حباب۔ امام شمس الدین الذهبیؒ وائی۔ چه دے د بصرے کثیر الحدیث دے او په فن حدیث کښی کامل ماهر او ثقه امام دے۔

(۲) ابو الولید طیالسی هشام بن عبد الملکؒ۔ د بخاریؒ او د مسلمؒ په مرکزی راویانو کښی شمار دے۔ حافظ ابن حجرؒ ده ته الامام والحجۃ وائی۔ او هم دغه رنګے محدث عجلیؒ امام ابو حاتم

[1] مشکوۃ باب التسیر والتوکل ص۴۵۳ ج ۲ و ترمذی ص۷۷ ج ۲ و ابن سُنی ص۱۳۲ [2] ص۳۱ تذکرۃ الحفاظ ص۳۲ ج ۲ [3] ص۱۲

امام ابن قانع علامہ ابن سعد رح وغیرہ دہ تہ ثقہ ثبت فقیہ عاقل وغیرہ القاب ورکوی۔[۱]

(۳) لیث بن سعد رح۔ فقیہ ثقہ ثبت او مشہور امام فن دے۔[۲]

(۴) قیس بن حجاج رح دہ پہ بارہ کښ د چا جرح نہ دہ منقول۔ او حافظ ابن حجر رح دہ تہ رشتینے امام وائی۔ امام ابو حاتم رح دہ تہ صالح او ابن حبان رح ورتہ ثقہ وائی۔[۳]

(۵) حنش صنعانی رح۔ امام ابو زرعہ۔ عجلی رح یعقوب بن سفیان رح او ابن حبان رح ټول دہ تہ ثقہ وائی۔[۴]

(۶) عبد اللہ بن عباس رض حبر الامۃ ترجمان القرآن او مشہور فقیہ صحابی دے۔

حاصل دا دے چہ د دے روایت هر یو راوی د فن امام دے۔ او دا روایت صاف او واضح طور باندې دا خبرہ بیانوی۔ چہ پہ وخت د سختے کښ د غائبانہ بلنے او سوال لائق او د غیبی امداد غوښتلو مستحق صرف اللہ تعالٰی دے۔ او د دغې امداد حاصلولو ذریعہ د شریعت پابندی دہ۔

## د نفع نقصان مالک او اختیارمند ما فوق الاسباب صرف اللہ تہ دے۔

رونړو! قرآن کریم دا مسئلہ پہ ډیر بسط او تفصیل سرہ بار بار پہ مختلفو اسالیبو او طریقو سرہ بیان کړے دہ۔ چہ لائق د بلنے غائبانہ طور باندې صرف اللہ تعالٰی دے۔ او دا صفت د الوهیۃ دے۔ ځکہ چہ څوک پہ وخت د مصیبت کښ د دہ د لرے کولو او امداد کولو د پارہ هر څوک چہ بلی۔ نو د هغہ متعلق بہ د دہ د دریو خبرو عقیدہ وی۔

(۱) چہ هغہ ځما پہ حال او مصیبت باندې پوهیږی۔ یعنی عالم الغیب (باعطاء اللہ) دے حالانکہ اللہ تعالٰی فرمائی۔

وهم عن دعائهم غافلون ٥ (احقاف ع) [۱] دوی د بلونکو د بلنے نہ بالکل بے خبرہ دی۔ اھ

اموات غیر احیاء وما یشعرون ایان یبعثون ٥ (النحل ع۲) [۲] دوی مرہ دی ژوندی نہ دی۔ او پہ دے هم نہ پوهیږی چہ دوی بہ کلہ د قبرونو نہ پورتہ کولے شی۔ اھ

(۲) د بلونکی دا خیال وی۔ چہ هغہ ځما آواز اوری۔ (نزدے وی کہ لرے وی۔ مړ وی کہ ژوندے وی۔ او دا طاقت دوی تہ خدائی ورکړے دے۔) حالانکہ اللہ تعالٰی فرمائی۔

ان تدعوهم لا یسمعوا دعاءکم (فاطر ع۲) [۱] کہ تاسو دوی بلئے نو دوی ستاسو دا بلنہ نہ آوری۔

وما دعاء الکفرین الا فی ضلل ٥ (رعد ع۲ پ۱۳) [۲] د مشرکانو پہ وخت د مصیبت کښ بلنہ خپلو معبودینو لرہ بے فائدہ ده۔

---

۱ تهذیب التهذیب ص۳۴۵ ج۴ ۲ تقریب ص۳۱۱ ۳ تهذیب ص۳۹۰ ج۸ ۴ تهذیب ص۵۸ ج۳ ÷ ۱۲

(۳) دیلوبنگي دا خیال وی. چه دے څما مصیبت لرے کولو یانے قادر دے. په قدرتِ عطائي سره حالانکه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښې بار بار دا خبره واضح کړے ده - چه دا مشرکان چه کوم بزرگان پیغمبران او فرشتے، پیریان په وخت د مصیبت کښې بلي. او نور افعال دَ عبادت نذر و نیاز او سجده. طواف وغیره دَ هغوی دَ پاره په دے خیال کوی - چه دوی ته الله تعالیٰ په کارخانه دَ عالم کښې دَ نفع نقصان اختیار ورکړے دے. دوی په عالم کښې تکوینی یعنی مافوق الاسباب طور باندے دَ ذرے هومره اختیار نه لري.

او کومې چې دَ غائبانه بللے په بحث کښې آیات ۱ ۲ ۳ ۴ ۵ او حدیث دَ وَاَنْذِرْ عَشِیْرَتَکَ الْاَقْرَبِیْنَ هم پیش شوې خبرې واضح دلیل دے - چه دَ پیغمبر علیه السلام په لاس کښې څه اختیار په تکوینی امورو کښې نشته دے. بلکه الله تعالیٰ خپل محبوب پیغمبر ته وائي - چه صاف طور سره خپل حیثیت بیان کړه. او اووایه چه څما په لاس کښې دَ نفع نقصان هیڅ اختیار نشته دے. نه دَ ځان دَ پاره او نه دَ بل دَ پاره

(۱) قُلْ لَّا اَمْلِکُ لِنَفْسِیْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا اِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ. (اعراف ع ۲۳) — او وایه چه نه یم زه اختیارمند دَ خپل ځان دَ پاره دَ څه نفع او ضرر مګر هغه کار نه کیږی چه خدائي ئې او غواړی.

(۲) قُلْ اِنِّیْ لَآ اَمْلِکُ لَکُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا ۝ (جن) — او وایه چه زه نه یم اختیارمند تاسو ته دَ څه ضرر یا دَ نفع - رسولو.

(۳) مَا عِنْدِیْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ اِنِ الْحُکْمُ اِلَّا لِلّٰهِ. — نشته څما په اختیار کښې هغه عذاب چه تاسو ئې غواړئ بے دَ الله تعالیٰ نه هیچا لره حکم او تصرف نشته دے.

(۴) قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِیْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِیَ الْاَمْرُ بَیْنِیْ وَبَیْنَکُمْ (انعام ع ۷) — او وایه که څما په اختیار کښې هغه شئے وے - چه تاسو ئې غواړئ. نو څما او ستاسو په مینځ کښې به شوے وو فیصله.

(۵) قُلْ اِنَّمَا الْاٰیٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ (انعام ع) — او وایه چه معجزات دَ الله تعالیٰ په اختیار کښې دی.

رونړو! دَ دغے دَرېو وارو عقیدو تردید علماؤ دَ اسلام په خپلو تصنیفاتو کښې واضح طور باندے کړیدے. چنانچه دَ اولے او دوېمے عقیدے دَ تردید دَ پاره دَ دے قسم تصریحات فقهاؤ کړیدی.

مَنْ قَالَ اَرْوَاحُ الْمَشَائِخِ حَاضِرَةٌ تَعْلَمُ یَکْفُرُ [۱] — څوک چه دا وائي چه دَ بزرګانو ارواح حاضر ناظر دی - او پوهیږی (په هر څیز او نو) نو دا کس کافر شو.

او دَ دریمے عقیدے یعنی دَ دے عقیدے

[۱] فتاوی بزازیه ص ۳۲۶ او بحر الرائق ص ۱۲۴ ج ۵ ۔

چه بزرګان او پیغمبران وغیره په نفع نقصان باندې قادر دی. په قدرت عطائی سره. تردید په دے قسم عباراتو سره کړیږی ے.

منها ان ظنّ انّ الميّت يتصرف في الامور دون الله واعتقاده بذلك كفر[1]
دنذر لغیر الله د باطلیدو یوه وجه داده. چه کچیرے نذر کونکے دا خیال کوی چه مړے تصرف کوی. نو دا عقیده د کفر ده.

شبهہ!— کوم آیتونو کښی چه نفی د عبادت او د بلنے شوے ده. د هغے نه مراد د مشرکین عرب بلنه او عبادت دے. او دوی به د کانړو او بتانو د پاره دا کارونه کول. او شک نشته چه کانړی او بتان نه خبره اوری. او نه ئے امداد کولے شی. او مونږ خو بزرګانو او صالحینو ته امداد دغواړو. او په وخت د سختے کښی ئے بلو. او دوی ته الله تعالیٰ طاقت ورکړے او د نفع نقصان ورکړیدے.

جواب !— دا خبره کول د عربو د عقائدو نه د لاعلمئ دلیل دے. او هم د دغے لاعلمئ په وجه د مذکوره آیتونو په مطلب باندې معترض صاحب نه پوهیږی. او د تخصیص دعوی ئے کوی. حقیقت دا دے چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مخاطبینو اولین یعنی د مشرکین عرب شرک لوئی او مشهور قسم "شرک بالعباد الصالحین" وه. د دوی دا خیال وه. چه خالق او رازق بزرخو الله تعالیٰ دے. لیکن بعض بندګان د الله ته د عبادت او د زهد وتقوی په وجه دا سے مرتبے ته رسیدلی دی. چه الله ته ورته خپل بعض صفات ورکړیدی. یعنی د لرے او نزدے نه اوریدل. په پټو او په ښکاره خبرو او کارونو باندې پوهیدل. تصرف بدون الاسباب العادیة. او مونږ چونکه د الله تعالیٰ نه ډیر لرے یو. د دے وجه نه مونږ له د دغو بزرګانو او نیکانو بندګانو تعظیم پکار دے. یعنی د دوی په نوم نذر و نیاز او شکرانے ورکول. د دوی په نوم جوړ شوی بتانو په مخکښی سجده کول. او د دوی په خواکښی قربانی کول وغیره شو. او په وخت د سختے کښی مونږ ته هم د دوی بلنه پکار ده. ځکه چه دوی ځونږ په سختے هم پوهیږی او ځونږ آواز ونه او فریاد دوی هم آوری. اګرکه ځونږ نه ډیر مخکښی مړه دی. او مونږ ته ئے په سترګو نه وینو. او دوی ځونږ د هم نوی حاجتونو او مصیبتونو د پوره کولو د پاره د الله تعالیٰ په دربار کښی سوال او سفارش کوی. په دے کښی هم شک نشته دے. چه دوی ځان ته د کانړو یا د پیتلو یا د نورو څیزونو بتان او د دوی او به ظاهر کښی سجدے او طوافونه او قربانئ ئے هم د دغه بتانو په مخکښی کولے. لیکن په حقیقت کښی دوی دا بتان صرف د صالحینو د

[1] بحر الرائق ص۲۹۸ ج۲ مصری شامی ص۱۳۵ ج۱، ۲ : ۲

اروا حو د استحضار د پاره یوه قبله کرځولے وه. لکه ډیر کسان د خپل دوست او د محبوب تصویر ځان ته کړی. د پاره د دے چه د دے تصویر په وجه ورته خپل دوست را یاد شی او د ده په طرف توجه د خپل دوست تصور ته اوګرځی. او خیالات ئے پراګنده نشی.

؎ دِل کے آئینے میں ہے تصویر یار　　جب ذرا گردن جھکائی دیکھ لی

د عربو د دغ عقیدے ثبوت په مندرجه ذیل دلائل سره کیږی. په دے کښې غور وکاردے.

(۱) ولئن سئلتهم من خلق السمٰوٰت والارض وسخر الشمس والقمر لیقولنّ الله فانی یؤفکون (عنکبوت ع ۶ پ ۲۱)

کچرے تپوس اوکړے د دے مشرکانو د مکے نه چه زمکه او آسمانونه چا پیدا کړیدی. او نمر او سپوږمے چا تابع کړیدی. نو دوی به ضرور او وائی چه الله تعالیٰ. نو سره د دے اقرار نه په کوم کند سره دوی

د دے قسم آیتونه زخرف ع ۷ ع ۶. زمر ع ۴ وغیره کښې هم موجود دی. چه د هغے نه صاف طور باندِ دا ثابتیږی. چه مشرکانو د عربو به پیدا کونکے د عالم صرف الله ګڼرلو.

(۲) ولئن سئلتهم من نزّل من السماء ماءً فاحیا به الارض بعد موتها لیقولنّ الله. (عنکبوت ع ۶ پ ۲۱)

کچرے تپوس اوکړے ته د دے مشرکانو د مکے نه چه د باران راوروړو په وجه دا مزکه پس د مراوے کیدو د دے نه چا تروتازه کړه. نو دوی به ضرور دا او وائی چه الله تعالیٰ

د دے آیت نه صاف معلومیږی شو که چه مشرکانو به باران وروونکے صرف الله تعالیٰ ګڼرلو.

(۳) ولئن سئلتهم من یرزقکم من السماء والارض امّن یملک السمع والابصار ومن یخرج الحیّ من المیت ومن یخرج المیت من الحیّ ومن یدبر الامر فسیقولون الله قل افلا تتقون ۰ (یونس ع ۴ پ ۱۱)

کچرے د دوی نه تپوس اوکړے چه د آسمانونو او مزکے نه تاسو ته رزق څوک درکوی. یا ستاسو د غوږونو او د سترګو اختیارمند څوک دے. او د ژوندی نه مړے او د مړی نه ژوندے څوک پیدا کوی. او تپوس ورنه اوکړه چه د ټول کارونو انتظام څوک کوی. نو دوی به او وائی چه الله. نو او وایه چه بیا تاسو ولے نه یریږئ؟

(۴) قل من بیده ملکوت کل شیءٍ و هو یجیر ولا یجار علیه ان کنتم تعلمون ۰ سیقولون الله قل فانی تسحرون. ( )

او وایه چه د هر څیز اختیار او واک د چا په لاس کښې دے او هغه څوک دے چه هر چا له پناه ورکولے شی او په هغه باندې څوک پناه نشی ورکولے. که تاسو پوهیږئ. نو دوی به او وائی چه الله دے. او وایه نو د څه نه په تاسو جادو اوکړے شو.

دا آیتونه ما د اختصار په وجه بطور مثال نقل کړیدی. ورنه د دے قسم آیتونه قرآن کریم

کښې بے شماره دی. او په واضح طور سره په دے دلالت کوی. چه دَ عربو دَ مشرکانو دا عقیده وه. چه پیدا کونکے دَ تولو څیزونو او باران ورونکے. رزق ورکونکے بلکه دَ تولو کارونو انتظام کونکے صرف الله تعالےٰ دے. او الله تعالےٰ چه څوک اونیسی نو هیڅ څوک [illegible] خلاصولے نشی.

رونړو! - تاسو سوچ اوکړئ. چه دَ دے عقیدو خاوندان دومره بے وقوفان کیدے شی. چه کانړو ته خدایان اووائی. او په وخت دَ سختئ کښې کانړو ته اووائی چه راشه [illegible] هرگز دا خبره نه وه. بلکه حقیقت دا وه. چه دوئ به دا تول کارونه دَ شرک دَ بزرگانو او [illegible] پیغمبرانو. فرشتو دَ پاره کول. او رابلل به ئے. په مندرجه ذیل آیتونو کښې تدبر پکار دے.

(۱) والذین یدعون من دون الله لا یخلقون شیئًا وهم یخلقون اموات غیر احیاء وما یشعرون ایان یبعثون ۝ (النحل پ ۱۴)

او هغه کسان چه دوئ ئے بلی سوا دَ الله تعالےٰ نه نشی [illegible] کولے څه شئ بلکه دوئ پخپله پیدا کړی شوی دی. دوئ [illegible] مړه دی ژوندی نه دی. او نه پوهیږی دوئ چه کله دَ قبرونو نه پورته کولے شی. اه

دَ عربئ دا قاعده ده. چه لفظ دَ الّذین او جمع په واو او نون سره دَ کانړو دَ پاره نشی استعمالیدے. بلکه دَ عقلمند و خلقو دَ پاره استعمالیږی. نو که چرے مراد کانړی وے [illegible] اللاتی یا الّتی (بتاویل الجماعۃ) به وئیلے کیده. او دَ یخلقون په ځائ به یُخلقن یا تخلق او دَ یشعرون په ځائ به یشعرن یا تشعر راغلے وے او هم دا رنگے لفظ دَ بعث هم [illegible] کانړو سره مناسب نه دے. ځکه دَ دے نه مراد په دے ځائ کښې پس دَ مرګ نه ژوندی [illegible] دی. او دَ حکمت طبعی صحیح تحقیق دا دے (اگرکه بعض حکماء په دے کانړو کښې یو قسم شعور منی. لیکن دا شعور که ثابت هم شی نو دے ته حیاة نشی وئیلے کما لا یخفی علی الفطن) چه په کانړو کښې ژوند نشته دے. نو چه ژوند نشته دے نو مرګ ورلره هم نشته او چه مرګ ورلره نشته نو پس دَ مرګ نه ژوند (بعث) به ورلره څرنګه ثابت کړے شی؟

هم دَ دغے وجوهاتُ په بناء حضرت شاه عبد القادر رح دهلوی په موضح القرآن کښې فرمائی چه. دا آیت په حق دَ هغه مشرکانو کښې نازل دے چه مړو بزرګانو ته او ازونه کوی

(۲) یوم نحشرهم جمیعًا ثم نقول للّذین اشرکوا مکانکم انتم وشرکاؤکم

په کوم ورځ چه مونږ به دوئ تول راغونډ کړو. او بیا به مشرکانو ته اووایو چه تاسو او ستاسو شریکان په خپل ځای

فزيلنا بينهم وقال شركاؤهم ما كنتم ايانا تعبدون. فكفى بالله شهيدًا بيننا وبينكم ان كنا عن عبادتكم لغافلين (يونس ع پ ۱۱)

...ودميږئ نو جلا بئ به را ولو مونږ د دوئ په مينځ کښې. نو د دوئ شريکان او معبودين به او وائي. ما سو خو ځمونږ عبادت په اصل کښې نه کولو بلکه دا خو د شيطان بندګي وه) او الله ته په دے ګواه دے چه مونږ ستاسو د عبادت او د بلے نه بے خبره وو. اھ

په دے آيت کښې لفظ د حشر ذکر شويدے. او د دے نه مراد د مکلفينُ جمع کول او راغونډول دی. د حساب کتاب د پاره. نو د دے نسبت هم کانړو ته نشي صحيح کيدے

شاه صاحب فرمائي.

يعني مشرک هيں اپنے خيال کو پوجتے هيں يا شيطان کو اور نام کرتے هيں نيکوں کا وه اس کام سے بيزار هيں۔ آخرة ميں معلوم هوگا۔ (موضح القرآن)

مشرکان په اصل کښې د خپل خيال او د شيطان پرستش کوی. او نوم آخلي د نيکانو بزرګانو. حالانکه دا نيکان د دے نه ويزاره دی. او دا خبره به قيامت کښې معلومه شي.

د دے قسم متعدد د آيتونه سورة احقاف[1] انعام[2] اعراف[3] حم السجدة[4] بني اسرائيل[5] سبأ[6] فاطر[7] رعد[8] مريم[9] وغيره کښې موجود دی. چه په دوئ کښې تدبر کولو نه دا خبر بالکل واضح طور سره معلوميږي. چه د عربو د مشرکانو معبودين په اصل کښې کانړي او بتان نه وو. بلکه نيکان بنديان او بزرګان وو.

## د عربو د مشهورو بتانو متعلق د مفسرينُ او محدثينُ تصريحات

دا خبره چه د عربو معبودين په حقيقت کښې نيکان بنديان وو. صرف د مذکوره آيتونو د اشاراتو او دلالتونه نه معلوميږي. بلکه په دے باند د مفسرين او محدثين واضح تصريحات هم موجود دی.

(۱) عن ابن عباسؓ قال صارت الاوثان التي كانت في قوم نوح عليه السلام في العرب فاما ود[1] كانت لكلب بدومة الجندل واما سواع[2] كانت لهذيل واما يغوث فكانت لمراد ثم لبني غطيف بالجوف عند سبأ

عبد الله بن عباسؓ فرمائيلي دی. چه کوم بتان چه په قوم د نوحؑ کښې وو. هم د هغوئ په نومونو به عربو کښې معبودين او ګرځيدل. ودّ[1] د شام دومة الجندل نوم ښار کښې د بنو کلب معبود وه. او سواع[2] د مکے په خوا کښې د بنو هذيل معبود وه. او يغوث[3] اول په يمن کښې د مراد او بيا د يمن د سبا ښار په خوا کښې جوف نوم

واما يعوق[۴] فكانت لهمدان واما نسر[۵] فكانت لحمير لآل ذي الكلاع[۶]

يو ځای کښ د بنو غطيف معبود اوګرځيد. او يعوق د قبيله همدان معبود وه. او نسر د ذي الكلاع په اولادکښ د بنو حمير معبود اوګرځيد.

اسماء رجال صالحين من قوم نوح فلما هلكوا اوحى الشيطن الى قومهم ان انصبوا الى مجالسهم التي كانوا يجلسون انصابا وسموها باسمائهم ففعلوا فلم تعبد حتى اذا هلك اولئك وتنسخ العلم عبدت[۱]

او دا اول د نوح ؑ په قوم کښ نيکان بنديان وو چه کله دوئ هلاک (وفات) شو نو شيطان دوئ ته دا تعليم ورکړه چه د دوی د ناستے په ځايونو کښ څه نښے اودروئے. او په دے نخو د دغے نيکانو بندګانو نومونه کيږدئ. نو ترڅو موده خو د دے نخو عبادت نشه کيدے. مګر کله د دغے طبقے خلق ختم شو. او صحيح علم هم ختم شو نو عبادت ئے شروع شو اه

د دے عبارت نه صاف طور سره معلوم شوه. چه اصل معبودين د مشرکانو دا صالحين او بزرګان وو. او د دوئ په نوم جوړ شوی بتان ئے صرف په طور د نخو او د قبلے اودرولی وو:

د بخاری غوندے کتاب او د ابن عباس رض غوندے حبر الامة د قول ذکر کولو نه پس خو بظاهر د بلے حوالے ضرورت نشته دے. ليکن د مزيد وضاحت د پاره يو څو حوالے نورے اوری.

(۲) حافظ ابن کثير رح م ۷۷۴ هـ هم د دغے ود سواع يغوث يعوق نسر متعلق فرمائی.

ولهم اتباع يقتدون بهم فلما ماتوا قال اصحابهم الذين يقتدون بهم لو صورناهم كان اشوق لنا الى العبادة اذا ذكرناهم فصوروهم[۲] الخ

او د دوئ تابعداران او مريدان وو. چه د دوئ تابعداری به ئے کوله. نو کله چه دوئ وفات شو. نو مريدانو ئے اووے. چه که مونږ د دوئ تصويرونه ځان ته اودروو نو مونږ به شوق په عبادت کښ ډير شی څو وخت چه مونږ ته دوئ ياد شی. نو په دے خيال ئے تصويرونه جوړ کړل

(۳) حافظ ابن القيم الجوزی رح المتوفی سنة ۷۵۱ هـ فرمائی.

قال غير واحد من السلف كان هؤلاء قوما صالحين في قوم نوح فلما ماتوا عكفوا على قبورهم ثم صوروا تماثيلهم ثم طال عليهم الامد فعبدوهم[۳]

د سلفو ډير علماء وائی. چه دا کسان د قوم نوح ؑ نيکان بنديان وو نو چه کله دوئ مړه شو نو عقيدتمندانو ئے په قبرونو کښ ناستے او مجاوران شو) او بيائے د دوئ تصويرونه جوړ کړل. او چه څه موده تيره شوه. نو د هغوئ عبادت ئے شروع کړو. اهـ

---

۱ صحيح بخاری ص ۷۳۲ ج ۲ وتفسير عزيزی اردو پاره تبارک
۲ وابن کثير ص ۴۲۶ ج ۴ والاتقان ص ۱۴۳ ج ۲ والبدايه والنهايه ص ۱۰۶ ج ۱ وابن کثير ص ۳۲۶ ج ۴ اغاثة اللهفان ص ۱۸۴ ج ۲
ومثله في البدايه والنهايه ص ۱۹۰ ج ۲

رونړو! ـ دَدے نہ معلومہ شوہ. چہ دَقولونہ اول شرک دَنیکانو بندیانو او دَ دوئ دَ قبرونو پہ وجہ دُنیا کښ رائج شوید ے. او هغوئ هم دا قول کارونہ دَ تقرب الٰهی دَ پارہ کول. او نن هم پہ دغہ خیال دا کارونہ کیږی. او افسوس دے چہ دَ دغے شرک دَ ترویج دَ پارہ لوئ لوئ هښیاران کسان هم پہ غلط فهمئ کښ مبتلا دی. او وائی چہ دا شرک نہ دے.

ے خرد کا نام جنوں رکھ دیا جنوں کا خرد ؛
جو چاہے آپ کا حسن کرشمہ ساز کرے ؛

(۴) دَ مشرکانو دَ عربو یو معبود او بت لات هم وہ. او قرآن کریم کښ دَ دہ ذکر شتہ دے. دَ دہ متعلق دَ امام بخاری روایت دا دے.

کان اللات رجلاً یلتُّ سویق الحاج[1]. — لات یو سړے وہ چہ پہ موسم دَ حج کښ بہ ئے حاجیانو تہ دَ ستوانو شربت ورکوو. اھ

(۵) هم دَ دغے لات پہ بارہ کښ مجاهد، ربیع بن انس وغیرہ مفسرین وائی.

فلمّا مات عکفوا علی قبرہ فعبدوہ[2] — هر کلہ چہ دے وفات شہ. معتقدین ئے پہ قبر کیناستل او دَ هغہ عبادت ئے شروع کم. اھ

(۶) شاہ ولی اللہ محدث دهلوی فرمائی.

وکفر اللہ مشرکی مکۃ بقولهم لرجل سخیٍّ کان یلت السویق للحاج انہ نصب منصب الالوهیۃ فجعلوا یستعینون بہ عند الشدائد[3] — اللہ تعالیٰ دَ مکے مشرکانو تہ پہ دے وجہ کافران اووے. چہ دَ ئی دَ یو سخی سړی پہ حق کښ دا خبرہ کولہ چہ دہ تہ دَ الوهیت مرتبہ ورکړے شویدہ. او دوئ بہ پہ مصیبتونو کښ دَ دہ نہ وسیلہ او امداد غوښتلو. اھ

(۷) مفتی سعد اللہ رح فرمائی.

رجل یلت بالسویق بالطائف وکانوا یعکفون علی قبرہ فجعلوہ وثناً[4] — دے دَ طائف یو سړے وہ چہ ستوان بہ ئے ورکول. او معتقدین بہ ئے پہ قبر مناوران کیدل نو دَ دہ بت ئے جوړ کم

(۸) عن ابن عباسؓ قال ان رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم لمّا قدم مکۃ ابیٰ ان یدخل البیت وفیہ الآلهۃ فامر بها — رسول اللہ ﷺ چہ مکے معظمے تہ راغے نو بیت اللہ شریف تہ اول داخل نہ شہ ځکہ چہ پہ هغے کښ بتان او تصویرونہ وو. نو حکم ئے اوکړ چہ دا تصویرونہ دې او ویستے شی

[1] بخاری ص ۷۲۵ ج ۲ ؛ [2] ابن کثیر ص ۲۵۳ ج ۴ ؛ [3] بدور بازغہ ص ۱۲۱ ؛ [4] کشف ظلام ص ۱۳ ؛

فأُخرجت فأُخرج صورة ابراهیم و اسمٰعیل فی ایدیهما الازلام[1] — نو او ویستلے شو. او د ابراهیمؑ اسمٰعیلؑ تصویرونه هم او ویستلے شو چه په لاسو نوکښ ئے د جوارئ (لاټرئ) غشي وُو. اھ

یعنی عربو چه په کومو غشو سره بر جواری کوله. هغه ئے د ابراهیمؑ او د اسمٰعیلؑ په نوم جوړ شوی بتانو په لاسونوکښ ورکړی وُو. رسول الله علیه السلام چه دا غشی اولید نو او ئے فرمایل چه دوئ دِ خدائ تباه کړی. په دے خو دوئ ښه پوهیدل چه دے پیغمبرانو دا جواری نده کړے.

نو کچرے دوئ د کانړو پرستش کولے نو د پیغمبرانو په نوم نو اوشکلونو بانړ د بتانو د تراشلو څه ضرورت وه؟ پس معلومه شوه. چه دا تصویرونه صرف قبلے او د توجه الی الارواح ذریعے وے.

(۹) حافظ ابن کثیرؒ د مسند احمد ابن حنبلؒ په روایت او سند سره نقل کړیدی ے. چه په دے تصویرونوکښ یو تصویر د مریمؑ هم وه[2].

(۱۰) د ابن عباسؓ نه نقل شویدے. چه په عربوکښ "عزٰی" نوم یوه خاپیرئ وه. په کومو ونوکښ چه دے ځان ښکاره کړے وه. هغه دوئ متبرک او لائق د تعظیم اوکرځولے (ځکه چه د دوئ یوه عقیده دا هم وه. چه پیریان او خاپیرئ په غیبو پوهیږی. او څوک چه د دوئ تعظیم کوی. نو دوئ ورته فائده رسولے شی. او څوک چه ئے تعظیم نه کوی نو نقصان ورته رسولے شی.)

(۱۱) د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم بانړ چه خالد بن ولیدؓ د عُزّٰی ونے له چه د طائف او د مکے په مینځ کښ د قریشو یو پرستش ګاه او دربار وه. او دوئ ئے پخوا کښ او د پاسه ئے آبادئ کړے وے. او دغه آبادئ د منجوانو قیام ګاه و نه او ښکاره کا هُو وُو د بیخ کنئ د پاره لاړو. نو منجاورانو ئے یا عُزّٰی یا عُزّٰی ای عزٰی را ئِد شه چغے وهلے

فاذا امرأة عُریانة ناشرة شعرها تحثو التراب علی رأسها حتی قتلها ثم رجع الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فاخبره فقال تلک العزٰی[3] — نو یوه ښځه را اُووته چه بربنډه وه او ویښته ئے شوکول په سر ئے خاوره نو ستے. حتی چه خالدؓ هغه مړه کړه. او چه واپس راغے او نبی علیه السلام ته ئے خبر ورکړه. نو هغوئ او فرمایل چه هم دغه عزٰی وه. اھ

[1] بخاری ص۶۱۴ ج۲ [2] البدایه والنهایه ص۳۰۳ ج۴ [3] معجم البلدان ص۱۶۵ ج۲ [4] البدایه والنهایه ص۳۱۶ ج۴ و ابن کثیر ص۲۵۲ ج۴ ÷ ÷ ۱۲

دَ دے صحیح روایت نہ معلوم شوہ۔ چہ قریش پہ اصل کښں ذکیکرد و نے تعظیم نہ کولو
بلکہ دَ دغے خاپیرئ پرستش یئے کولو۔ او پہ وخت دَ تکلیف کښں بہ یئے رابللہ۔ او دا ونډو
دَ توجہ یوہ ذریعہ وہ۔

(۱۲) دَعربو یو بل مشہور بت منات وہ۔ حافظ سیوطیؒ پہ اتقان کښں فرمائی چہ دا ھم
دَ یو انسان نوم وہ[۱]۔

(۱۳) یو بل مشہور بت بعل وہ۔ دا ھم دَ یوے ښځے نوم وہ۔ چہ خلقو بہ دَ دہ ډیر تعظیم
او عبادت کولو۔

| | |
|---|---|
| قال ابن اسحٰقؒ اخبرنی بعض اهل | بعض اهل علم وائی۔ چہ دوئ (یعنی قوم دَ الیاسؑ) بہ دَ یوے |
| العلم انهم کانوا یعبدون امرأة اسمها بعل[۲] | ښځے عبادت کولو چہ نوم یئے بعل وہ۔ |

(۱۴) یو دوہ نور مشہور بتان وُو۔ دَ یو نوم اساف او دَ بل نوم نائلہ وہ۔ امام نوویؒ فرمائی

| | |
|---|---|
| واما اساف ونائلة انما کان فیما یقال | اساف یو سړے وہ۔ چہ اساف بن بقاء یا ابن عمرو بہ |
| رجلا وامرأة فالرجل اساف بن بقاء و | ورتہ خلقو وئیلو۔ او نائلہ یوہ ښځہ وہ چہ ھغے تہ بہ یئے |
| یقال ابن عمرو والمرأة اسمها نائلة | نائلہ لور دَ ذئب یا لور دَ سهل ... |
| بنت ذئب وتقال بنت سهل[۳]۔ | وے او |

(۱۵) یو مشہور بت ھُبل وہ۔ دا دَ ھابیل پہ نوم جوړ شوے وہ۔ علامہ انور شاہ کشمیریؒ فرمائی

| | |
|---|---|
| انه کان عندهم صنم اتخذوه علی | دَ دوئ یو بت وہ چہ ھغہ یئے پہ نوم دَ ھابیلؑ |
| اسم هابیل المقتول کعامر وعمر[۴]۔ | جوړ کړے وہ۔ لکہ عامر او عمر۔ |

(۱۶) هندوان دَ برهما بت ډیر پرستش او تعظیم کوی۔ دا څوک وہ؟ علامہ عبدالکریم
الحنبلیؒ لیکی۔ چہ دَ هندو انو برهما هم هغہ دے چہ اهل کتاب ورتہ ابراهام او مسلمان
ورتہ ابراهیمؑ وائی۔ (بحوالہ برهان دهلی اپریل سنہ ۱۹۵۲ء)

علماؤ دَ صنم او دَ وثن تعریف داکړے دے۔ چہ دَ یو انسان پہ نوم جوړ شوے مجسّمے
او تصویر تہ وائی۔ امام ابن جریرؒ المتوفی سنہ ۳۱۰ھ او علامہ خازن م سنہ ۷۴۱ھ فرمائی۔

| | |
|---|---|
| والاصنام جمع صنم وهو التمثال الذی | اصنام جمع دَ صنم دہ او صنم دَ لرگی یا دَ کانړی یا دَ |
| یتخذ من خشب او حجارة او حدید او ذهب | اسپنے یا دَ سرو |

[۱] الاتقان ص۱۴۲ ج ۲ [۲] ابن کثیر ص۲۰ ج ۴ [۳] الاتقان ص۱۴۲ ج ۲ [۳] النووی بر مسلم ص۱۴ ج ۱ [۴] فیض الباری ص۹۶ ج ۴ ∴

او نصبتہ علی صورۃ الانسان و ھو الوثن ایضاً[۱] — یا د سپینو زرو هغه مجسمې او بت ته وائي چه د انسان په شکل جوړ شوې شي. او وثن هم دغې ته وائي. اھ

دا بحث مې په تفصیل سره ځکه اوکړ. چه ډیر خلق په دې غلط فهمۍ کښې مبتلا دي. چه کومې آیتونه د عربو د عقائدو په تردید کښې ذکر شوي دي. دا د موجوده قبر پرستو خلاف نشي پیش کیدې. ځکه چه هغوئ د بتانو او د کانړو پرستش کوو. او مونږ خو اولیاء کرام ته حاجت روا او مشکل کشا باعطاء الله وایو. او د دوئ د قبرونو د تعظیم د پاره نذرانې او شکرانې غورزوو. او هم دغه یوه غټه غلطي ده. چه نن یکښې خلق مبتلا دي. په دې مذکوره دلائلو او حقائقو کښې غور او فکر بکار دې. شاید الله تعالیٰ دا سې خبره کونکو ته د حق د معلومیدو او د قبلولو توفیق ورکړي. ے

گُہر جو دل میں نہاں ہیں خدا ای دے تو ملیں. اسی کے پاس ہے مفتاح اِس خزانے کی

**شبه نمبر ۲** !- که چرې مشرکانو بتان او کانړي صرف نیکانو خلقو ته د توجه قبله گرځولي وو نو دوئ به د خو خو کانړو چه تراشلي به نه وو. د تعظیم د پاره طوافونه ولې کول؟ حالانکه دوئ به دا کار کولو. او چه سنګ کانړي به ئې او موندلو نو ځکنې کانړي به ئې او غورځولو.

**جواب** !- دا کار دوئ په اصل کښې د کانړو د پاره نه کولو د اگر که کیدې شي چه د مرورِ زمانه په وجه به وروستو مشرکانو د کم فهمۍ په وجه صرف د کانړو د پاره دا کار ونه کړې وي) بلکه دا کانړي به د حرم وو. او د کعبې د تعظیم د پاره به دوئ دا کار ونه کول.

چنانچه حافظ ابن کثیرؒ م ۷۷۴ھ او حافظ ابن القیمؒ م ۷۵۱ھ فرمائي. چه هر کله به اهل مکه په سفر تلل.

حمل معه حجراً من حجارۃ الحرم تعظیماً للحرم فحیث مانزلوا وضعوہ فطافوا به کطوافهم بالبیت حباً للبیت وصبابة[۲] — نو ځان سره به ئې د حرم یو کانړې واغست تعظیم کولو د پاره د حرم نو چه په یو ځای به دوئ د منزل کوله. نو دا کانړې به ئې کینوداو د هغې طواف به ئې کوو د بیت الله د محبت او د عشق د وجه نه.

**شبه نمبر ۳** !- په دې خو مونږ پوهه شو. چه د عربو اصلي معبودین صالحین او نیکان بندیان وو. او بتان صرف قبله وه. لیکن دوئ به دا صالحین او نیکان بندیان ځکه بلل چه ذاتي طور باندې ئې اختیارمند او پوهیدونکي منل. او مونږ خو ئې صرف د عطائي تصرف قائل یو

---

[۱] تفسیر ابن جریر ص ۵۹ ج ۷، خازن ص ۱۲۲ ج ۲ [۲] بخاري ص ۶۲۸ ج ۲ [۳] البدایه والنهایه ص ۱۸۸ ج ۲ و اغاثة اللهفان ص ۲۱۰ ج ۲

یعنی دا عقیده ساتو چه الله تعالیٰ دوی ته دا طاقت ورکړے دے. چه اګرکه مړه وی یا لرے وی. ځمونږ آواز به د اسبابو عادیه نه اوری. او مونږ ته د الله تعالیٰ په ورکړی شوی طاقت سره نفع نقصان رسولے شی. او دا خو نه د عربو عقیده وه او نه دا د شرک په تعریف کښ راتلے شی. ځکه چه د عقائد و دا مسئله ده. چه صفات د الله تعالیٰ قدیم دی. یعنی ذاتی دی. او عطائی صفت او اختیار د الله تعالیٰ صفت نشی کیدے.

**جواب!** — دا کوم خبره چه په شبه کښ ذکر شوے ده. د عربو هم دغه عقیده وه. نو اس به یا دے عقیدے ته شرک وائے. او یا به د عربو مشرکین ته موحدین وائے. دے دواړو خبرو کښ نسبت د منع الخلو دے. او قضیه به ئے دا وی.

اما ان یکون اهل مکة موحدین او تکون عقیدة التصرف العطائی شرکًا. ولکنهم ما کانوا موحدین فتلک العقیدة شرک.

دلائل د نسبت عنادیه "د قضیے یعنی د دے خبرے چه عرب د ذاتی قدرت او علم قائل نه وو. بلکه د عطائی تصرف او علم و سمع قائل وو دا دی.

## د عربو مشرکانو به بزرګان عطائی طور بانډې متصرف او غیبی طور بانډې پوهیدونکی او اوریدونکی منل

(۱) ویعبدون من دون الله ما — او دا مشرکان سوا د الله تعالیٰ نه د هغه کسانو عبادت کوی. چه او لا یضرهم ولا ینفعهم ویقولون — (ابلی ئے) چه دوی ته ضرر او نفع نشی رسولے. او وائی چه هؤلاء شفعاؤنا عند الله (یونس ع ۲) — مونږ دوی په دے وجه رابلو چه مونږ له د الله په دربار کښ سفارش کوی. دا آیت صاف طور سره دا خبره واضح کوی. چه مشرکان د ذاتی قدرت قائل نه وو. بلکه د عطائی قدرت قائل وو. ځکه چه سفارشی خو ذاتی طور بانډې متصرف او کارساز نه نشی ویلے. شاه صاحب فرمائی.

جو شرک ہے سو یہی کہتا ہے کہ اللہ ایک ہے اور یہ شریک اسکی طرف سے ہم پر مختار ہیں[1]. — مشرک هم دغه وائی چه الله تعالیٰ یو دے. او دا شریکان ئے د هغه د طرف نه په مونږ بانډې اختیارمند دی. اه

دوی دا سفارش په دنیوی حاجتونو کښ منلو. ځکه چه عام طور سره د دوی په آخرت بانډې ایمان نه وه. نو دوی به داوے چه کچرے آخرت بالفرض راشی نو دا

[1] موضح القرآن بر قرآن مترجم شیخ الهند، مطبوعه ادارۀ علوم شرعیه کراچی ص ۲۷۱ ۱۳ ؛

صالحین به څوننو سفارش اوکړی. او په دنیوی ضروریاتو کښې خو دوی څوننو سفارش کوی. اګرکه دوی مړه دی. ځکه چه دوی څوننو آواز آوری. او سفارش په برزخ کښې کولے شی. علامه خازن فرمائی.

وفی هذه الشفاعة قولان احدهما انهم یزعمون انها تشفع لهم فی الاٰخرة قاله ابن جریج عن ابن عباس رض والثانی انها تشفع لهم فی الدنیا فی اصلاح معایشهم قاله الحسن رح لانهم لایعتقدون بعثاً بعد الموت [۱]

په دے سفارش کښې دوه قوله دی. یو دا چه دوی به دا خیال کوو. چه دا صالحین به په آخرت کښې څوننو سفارش کوی. ابن جریج دا قول د ابن عباس رض نه نقل کړے دے. او دوئم دا چه دوی په دنیا کښې د دوی د اصلاح معاش د پاره سفارش کوی. ځکه چه په قیامت خو دوی د سره ایمان نه وه. دا قول د حسن بصری رحمة الله تعالیٰ علیه دے. اه

(۲) والذین اتخذوا من دونه اولیاء ما نعبدهم الا لیقربونا الی الله زلفی. (زمر ع پ ۲۳)

کوم کسان چه سوا د الله نه د خان د پاره کارسازان او امداد یان په امورو غیبیو کښې مقرر کړیدی. هغوی دا وائی چه مونږ د دوی عبادت د دے د پاره کوو چه مونږ نزدے کړی الله ته په مرتبه کښې.

حافظ ابن کثیر رح د دے آیت په تفسیر کښې فرمائی.

ای انما یحملهم علی عبادتهم لهم انهم عمدوا الی اصنام اتخذوها علی صور الملٰئکة المقربین فی زعمهم فعبدوا تلک الصور تنزیلاً لذلک منزلة عبادتهم الملٰئکة لیشفعوا لهم عند الله فی نصرهم ورزقهم من امور الدنیا فاما المعاد فکانوا جاحدین له کافرین به. قال قتادة والسدی ومالک عن زید بن اسلم وابن زید الا لیقربونا الی الله زلفی ای لیشفعوا لنا ویقربونا

د دوی د دغه عبادت کولو وجه داوه. چه دوی په خپل خیال کښې د مقربو فرشتو په شکلونو باندې بتان جوړ کړی وو. او د دے بتانو عبادت یے د دغه فرشتو عبادت ګڼړلو. د پاره د دے چه دا فرشتے د الله په دربار کښې د دوی د امداد او رزق وغیره دنیوی حاجتونو د پاره سفارش اوکی. او قیامت باندې خو د دوی د سره ایمان نه وه. امام قتاده رح سدی رح او مالک رح د زید بن اسلم رح او د ابن زید نه د لیقربونا الخ معنی دا نقل کړیده. چه دوی څوننو سفارش اوکی او مونږ په مرتبه کښې الله ته نزدے کړی.

[۱] خازن ص۱۲ ج۳ ؛ ؛ ۱۲

عنده منزلته ولهذا كانوا يقولون في تلبيتهم اذا حجوا في جاهليتهم لبيك لا شريك لك الا شريكا هو لك تملكه وما ملك وهذه الشبهة هي التي اعتمدها المشركون في قديم الدهر وحديثه وجاءتهم الرسل بردها والنهي عنها والدعوة الى افراد العبادة لله وحده لا شريك له وان هذا شيء اخترعه المشركون من عند انفسهم لم يأذن به الله ولا رضي به بل ابغضه ونهى عنه واخبر ان الملئكة المقربين وغيرهم كلهم عبيد خاضعون لله لا يشفعون عنده الا باذنه لمن ارتضى وليسوا عنده كالامراء عند ملوكهم يشفعون عندهم بغير اذنهم فيما احبه الملوك وأبوه فلا تضربوا لله الامثال، تعالى الله عن ذلك علوا كبيرا۔[۱]

او هم د دې وجه نه دوئ د جاهلیت په زمانه کښې د تلبیه ویلو په وخت کښې ویل، چه اے خدایه ستا عبادت ته حاضریم ستا شریک نشته، سوا د هغه شریک نه چه د هغه هم ته مالک یې او د هغه طاقت او اختیار هم ته مالک یې، چه هغه ته حاصل دے. او دا هغه شبه ده چه څمکنو او متقدمو دواړو مشرکینو په دې اعتماد کړے دے. او انبیاء علیهم السلام د دې د رد او د دې نه د منع کولو او خاص د الله عبادت ته د بللو دپاره راغلی دی. او دا یو غلط عقیده ده چه مشرکانو د ځان نه را ایستلې ده. الله تعالی نه د دې اجازت کړے دے او نه پرې هغه خوشحالیږي. بلکه الله تعالی خود دې عقیدې منع کړېده. او د دې نه یې منع کړېده[۲] او خبر یې ورکړېدے چه ملایک او نور ټول بندګان د هغه عاجزی کونکی تابعدار دی. او د دوئ حیثیت داسې نه دے. لکه چه د دنیوی بادشاهانو په دربار کښې د امیرانو او د وزیرانو دی. چه د بادشاهانو د اجازت نه بغیر د هغه خبرو سفارش کوي. چه کله په بادشاه خوشحاله وي. او کله خفه. نو د الله مثال د دغې بادشاهانو سره مه ورکوئ حکم چه دے د دې نه ډیر زیات لوئ دے۔ ا ه

[۲] یعنی سفارش کول په امورو د دنیا کښې پس د مرګ نه ۱۲

د حافظ ابن کثیرؒ دا طویل عبارت مې بلفظها د دې دپاره نقل کړ، چه د عربو د مشرکانو عقیده ښه واضحه شي. او دا معلومه شي چه هغوئ به خپل معبودین پلې خیال نه بلل، چه دوئ ذاتي طور باندې اختیارمند دي. او یې د اسبابو نه ذاتي طور باندې څمونږ په حال پوهیږي. او څمونږ آواز او فریاد اوري. بلکه پدې خیال به یې بلل، چه دوئ اکرم مره دي. څو څمونږ سفارش د الله په دربار کښې کوي. او انبیاء کرامو دوئ ته داوې چه د الله په دربار کښې د اجازت نه څوک سفارش نشي کولې.

کوم تلبیه د مشرکانو چه ابن کثیرؒ نقل کړې ده. د هغې تکمیل روایت دا دے۔

(۳) عن ابن عباس رض قال كان المشركون — ابن عباس رض فرمائي. چه مشرکانو به ویل چه اے خدا

[۱] تفسیر ابن کثیر ص ج ۲ ۱۲

یقولون لبیک لاشریک لک فیقول رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلکم قد قد الا شریکا هو لک تملکه وما ملک یقولون هذا وهم یطوفون بالبیت

وئیل چه اے خدایه ستا عبادت ته حاضر یو. ستا شریک نشته دے. نو نبی علیه السلام به فرمایل چه افسوس دوی ستا په حالت بس کړئ دا الفاظ کافی دی. خو دوئ به نه منع کیدله او ور پسے به یئے دا وئیل چه هغه شریک ستا شته کوم چه ته مالک یئے. اه

رونړو! - دا روایت په دے خبره کښ بالکل نص او صریح دے. چه د عربو مشرکانو به خپل معبودین ذاتی طور باندِ اختیار مند نه گنړل. بلکه عطائی طور باندِ یئے د الوهیت په کارونو کښ شریکان گنړل. او د دغے مذکوره آیتونو او روایت په روشنائی کښ علماؤ د اسلام د مشرکانو هم دغه عقیده بیان کړیده. یو څو حوالے ملاحظه کړئ.

(۱) امام اهل سنّت مشهور محدث فقیه فلسفی متکلم سید شریف جرجانی حنفی فرمائی

فانهم لا یقولون بوجود الٰهین واجبی الوجود ولا یصفون الاوثان بصفات الالٰهیة وان اطلقوا علیها اسم الاٰلهة بل اتخذوها علی انها تماثیل الانبیاء او الزهاد او الملئکة او الکواکب و اشتغلوا بتعظیمها علی وجه العبادة توصلاً بها الی ما هو اله حقیقة[۲]

دوئ د دوو خدایانو د وجود دا سے قائله نه دی. چه واجب الوجود او ذاتی وجود لری. او دوئ دراصل خپلو بتانو ته خدایان نه وائی - اگر که په ظاهر کښ ور باندِ د خدایانو اطلاق کوی. بلکه دا بتان دوئ د پیغمبرانو بزرگانو ملائیکو او ستورو په شکل جوړ کړیدی. او د دے بتانو تعظیم او عبادت په دے خیال کوی چه دا حقیقی الله او معبود ته د رسیدلو د پاره ذریعه ده. اه

هم د دے قسم عبارت د امام رازی رح سنه ۶۰۶ه دے. چه د الله تعالی سره په وجود قدرت علم و حکمت کښ ذاتی او مساویانه طور باندِ شریک منونکے تر اوسه نه دے پیدا شوے[۳]

په تشریح د ویقولون هؤلاء شفعاؤنا عند الله کښ امام رازی رح فرمائی. چه دوئ به وئیل چه په مونږ کښ اهلیت نشته دے چه براه راست د الله تعالی عبادت کوو - او په وخت د سختئ کښ ئے رابللو. د دے د پاره مونږ د دے بتانو تعظیم کوو. چه دوئ زمونږ سفارش اوکی. د دے تشریح نه پس امام موصوف فرمائی. چه دلته دا سوال پیدا کیږی. چه د دے بے جسمه بتانو او کانړو متعلق دوئ دا عقیده څرنگه ساتله چه دوئ زمونږ سفارش کوی. او د دے سوال جواب دا ورکوی چه اصل کښ دے مشرکانو دا د دغو معبودانو د مجسمو عبادت کولو. چنانچه فرمائی.

[۲] [illegible] مواقف نولکشوری [illegible] [۳] تفسیر کبیر ص ۳۱ ج [illegible]

× فی هذا الزمان ۔

ورابعًا انهم وضعوا هذه الاصنام و الاوثان علی صور انبیاء هم واکابرهم وزعموا انهم متیٰ اشتغلوا بعبادة هذه التماثیل فان اولئک الاکابر تکون شفعاء لهم عند الله ونظیرهٗ[×] اشتغال کثیر من الخلق بتعظیم قبور الاکابر علی اعتقاد انهم اذا عظموا قبورهم یکونون شفعاء لهم عند الله[له]

او څلورمه وجه داده چه دوئ دا بتان د پیغمبرانو او د مشرانو په شکلونو جوړ کړی وُو۔ او خیال یې داوه چه هرکله مونږ د دے بتانو تعظیم اوکو۔ نو دا بزرګان څمونږ د پاره سفارش کوی (په د نیوی حاجتونو کښ) او د دے مثال[په دے زمانه کښ] داد ے چه ډیر خلق د بزرګانو د قبرونو تعظیم (طواف سجده وغیره) په دے خیال کوی۔ چه دا څمونږ د پاره د الله په دربار کښ سفارشیان دی۔

حضرت امام شاه ولی الله الدهلویؒ المتوفی ۱۱۷۶ھ په خپل کتاب حجة الله البالغة کښ د توحید څلور مرتبے بیان کړیدی۔

(۱) حصر د وجوب وجود په حق د الله کښ۔ یعنی وجودِ ذاتی بغیر د الله نه د بل چا په حق کښ نه مَنَلْ۔

(۲) حصر د خلق د جواهرُ په حق د الله کښ۔ یعنی د آسمانونو او د مزکے د عرش او د تولو جسمونو پیدا کونکے صرف الله کنړل۔

د دے دوؤ مرتبو متعلق شاه صاحب فرمائی۔ آسمانی کتابونو د دے دوؤ مرتبو متعلق ډیر بحث نه دے کړے ځکه چه مشرکینُ د عربو او یهودو نصارٰی په دے کښ مخالفت نه دے کړے۔ بلکه قرآن کریم وائی چه دا منلے شوے خبرے وے۔

(۳) حصر د تدبیر په حق د الله کښ۔ یعنی د زمکے او د آسمانونو د کارونو انتظام او تدبیر کونکے صرف الله تعالےٰ کنړل۔

(۴) حصر د استحقاق عبادت په حق د الله کښ۔ یعنی لائق د عبادت (چه پدے کښ یو غائبانه بلنه هم ده) صرف الله تعالےٰ کنړل۔

شاه صاحب فرمائی چه پدے دوؤ مرتبو کښ تلازم دے۔ یعنی څوک چه مدبّر او منتظم وی۔ هغه به لائق د عبادت او د غائبانه بلنے وی۔ او چه څوک لائق د عبادت او د غائبانه بلنے وی۔ هغه به مدبّر وی۔ او په دے دوؤ مرتبو کښ ډیر خلقو اختلاف کړیدے۔ او بیا د مشرکینُ عقیده او مسلک پدے الفاظو سره بیانوی۔

[له] تفسیر کبیر ص ۲۱۶ ج ۴ : ۲۰

والمشرکون وافقوا المسلمین فی تدبیر
الامور العظام وفیما ابرم وجزم ولم یترکوا
لغیرہ خیرۃ ولم یوافقوهم فی سائر الامور
ذهبوا الیٰ ان الصالحین من قبلهم
عبدوا الله وتقربوا الیه فاعطاهم
الله الالوهیة فاستحقوا العبادة من
سائر الخلق کما ان ملک الملوک یخدمه
عبدہ فیحسن خدمته فیعطیه خلعة
الملک ویفوض الیه تدبیر بلد من
بلادہ فیستحق السمع والطاعة من اهل
ذلک البلد۔ قالوا لاتقبل عبادة
الله الا مضمومة بعبادتهم بل الحق
فی غایة التعالیٰ فلا تفید عبادته
تقربا منه بل لابد من عبادة
هؤلاء لیقربوا الی الله زلفیٰ وقالوا
هؤلاء یسمعون ویبصرون ویشفعون
لعبادهم ویدبرون امورهم و
ینصرونهم فنحتوا علیٰ اسماءهم
احجارا وجعلوها قبلة عند
توجههم الی هؤلاء فخلف من
بعدهم خلف فلم یفطنوا للفرق
بین الاصنام وبین من هی علیٰ
صورته فظنوها معبودات باعیانها
ولذلک ردّ الله تعالےٰ علیهم تارۃ
بالتنبیه علےٰ ان الملک والحکم له خاصة[1]

مسلمانانو سره مشرکان په دے خبره کښې موافق دی۔ چه
دَلویو لویو کارونو په انتظام او په هغه کارونو کښې چه الله
دَ هغې اراده او فیصله او کړی۔ دَ بل چا هیڅ اختیار نشته
دے۔ او په باقیو کارونو کښې دوئ دَ مسلمانانو سره موافق
نه دی۔ دَ دوئ دا خیال وُو۔ چه ځمونږ نه مخکښو بزرګانو دَ الله
عبادت کړیدے۔ او هغه ته نږدے شوی دی۔ نو الله تعالےٰ
ورته چل "الوهیت" یعنی غیبی تصرف او غیبی علم وسمع
ورکړیدے۔ نو دوئ دَ دے حقدار دی۔ چه باقی خلق دِ دَ
دوئ عبادت او کړی۔ لکه څرنګ چه یو غلام دَ بادشاه دیر
ښه خدمت او کی۔ نو بادشاه ورته دَ خپلے بادشاهۍ اختیارات
ورکوی۔ او دَ یو علاقے انتظام ورته او سپاری۔ نو دَ هغے
علاقے په خلقو دَ هغے غلام حکم منل ضروری وی۔ او دوئ
دا هم وائی چه براه راست دَ الله عبادت ذریعه دَ قرب
نشی ګرځیدے۔ تر هغے پورے چه دَ دے بزرګانو عبادت ورسره
یو ځائ نه کړے شی۔ بلکه دَ دے بزرګانو عبادت دَ پاره دَ دے
ضروری دے۔ چه دوئ مونږ په مرتبه کښې الله ته نږدے
کړی۔ او دَ دوئ دا خیال دے۔ چه دا بزرګان اوری۔ وینی
او خپل مُعتقدینو دَ پاره سفارش کوی۔ او دَ دوئ دَ کارونو
انتظام کوی۔ او امداد ورسره کوی۔ نو پدے خیال ئے دَ دوئ په
نوم بتان او تراشل۔ او دوئ ته ئے دَ توجه دَ پاره قبله او ګرځول۔
نو دَ دوئ نه روستو داسے کم عقل مشرکان راغلل چه دَ دغے
بتانو او دَ بزرګانو مینځ کښې ئے فرق او نه کړ۔ نو دغے بتانو
له ئے اصلی معبودین او ګڼړل۔ نو دَ دے وجه نه الله تعالےٰ
په رد کښې کله داسے وائی چه حکم او اختیار صرف ځما دے
او کله داسے وائی چه الهم ارجل یمشون بها الخ ام

[1] حجة الله البالغة اصح المطابع کراچی ص۱۲۰ ج۱ : ۱۲

دَشاه صاحب دَعبارت نه دَ دوي بلے شُبهٖي جواب هم معلوم شه- او هغه دا دے چه په قرآن کريم کښې دَ معبودينُ دَ عربو دَ پاره دَ غير ذوي العقول صيغے هم مستعملے شوي دے. نو جواب يے دا شه چه روستنو مشرکانو دَ غلط فهمۍ نه دا بتان اصل معبودين گرځولي وُو. نو دَ غير ذوي العقولُ صيغے را ورلو کښې دَ دوئ لحاظ شوي دے. فافهم.

**شبهه ۲ !** - دا خبره مونږ او منله چه دَ غير الله عبادت مطلقاً شرک دے اگر که په دے عقيده کا وي، چه دے عطائي طور باندې متصرف او دَ علم و سمع مالک دے ليکن مونږ دا نه منو چه په وخت دَ مصيبت کښې دَ اولياء کرامو بلنه عبادت دے. ځکه چه دَ غير الله دَ بلنے په قرآن کريم کښې په مختلفو مقاماتُ باندې ثبوت موجود دے. مثلاً يا قوم او من انصاري الى الله وغيره شو. او په کومو آيتونو کښې چه دَ دعاء لغير الله نه منع شوې ده. نو دَ دے نه مراد عبادت دے. او عام مفسرين هم دغه معنى کوي.

**جواب !** - دا خبره کول دراصل په يو غلط فهمۍ بنا ده. چه هغه دَ دُعاء په دوو قسمونو کښې دَ فرق نه کولو په وجه پيدا شوي ده. حالانکه "دُعا" دوه قسمه ده.

(۱) "يو قسم دعا او بلنه غائبانه ده" يعنې هغه چا ته آواز کول چه دَ ده او دَ هغه په مينځ کښې دَ آواز رسيدو اسباب دنيوي موجود نه وي. بلکه صرف په دے عقيده هغه ته فرياد کولے شي چه دے بغير دَ اسبابو نه اوريدے شي. که څه وي او که ژوندے. که نږدے وي او که لرے. او دا طاقت ده ته الله تعالىٰ ورکړے دے. او په دے طاقت کښې دے مستقل دے په استقلال عطائي سره. يعنې لکه څرنګ چه الله تعالىٰ بے اسبابو نه آوري په قدرت ذاتي سره دغه رنګ دے او ريدے شي خو په قدرت عطائي سره.

دا قسم دُعاء او بلنه عبادت بلکه دَ عبادت مغز او جوهر دے. او خاصه دَ الله تعالىٰ ده او دلائل يے مخکښې ذکر شوي دي. او مفسرين کرام چه دَ دعا تفسير په عبادت سره کوي نو دا معنى لغوي نه بيانوي. بلکه تعيين دَ مراد کوي. چه مراد په دے آيتونو کښې دُعاء غائبانه ده چه عبادت دے. ما تحت الاسباب دعاء حاضرانه نه ده. چه هغه عبادت هم نه دے او دا قسم بلنه دَ غير الله ناجائزه هم نه ده.

(۲) "دويم قسم دعاء حاضرانه ده" يعنې هغه چا ته آواز کول چه دَ ده او دَ هغه په مينځ کښې دَ آواز دَ رسيدو اسباب عاديه موجود وي- دا قسم عبادت نه دے- او کومو مقاماتو

بانڼ چه دَ غیرالله دَ بلنې ذکر دے. نو هلته دعه دعا او بلنه مراد ده. فافهم.

## حاصل بحث

دَ بحث سابقه حاصل دا شه. چه آخری وسیله دَ حل دَ مشکلاتُو او دَ پوره کیدو دَ حاجتونو دَ الله تعالیٰ په دربار کښې دُعا او فریاد کول دی او په قرآن وحدیث کښې مختلفې دُعاګانې ذکر شویدی. بلکه دَ بیل بیل حاجت دَ پاره جُدا جُدا دُعاګانې په روایاتو کښې نقل شویدی. او علماوُ دَ دُعاګانو په موضوع باندې مستقل تصنیفونه هم کړیدی. انسان لوه پکار دی چه دا دُعاګانې یاد کړی او په وخت دَ ضرورت کښې دِ دَ رب په دربار کښې خپل حاجت او فریاد پیش کړی.

او چونکه دَ الله نه بغیر بل څوک نه غائبانه آوازونه اوری او نه شر نفع نقصان بے اسبابو رسولے شی. دَ دے وجه نه بلنه دَ غیرالله غائبانه طور باندې ناجائز ده. او قرآنِ کریم دَدے نه په سختو الفاظو کښې منع کړیده. او دَ عربو دَ مشرکانو لوئ شرک هم دا وه. چه دوی به په وخت دَ مصیبت کښې نیکانو بندیانو ته آوازونه کول او بلل به ئې. او خیال ئې دا وه چه دوی که مړهٔ وی. یا ځمونږ نه لرے وی. خو ځمونږ آواز اوری او مونږ ته فائده هم رسولے شی. ودا طاقت دوی ته الله تعالیٰ دَ عبادت او دَ زهد وتقویٰ په وجه ورکړے دے.

حضرت شاه ولی الله الدهلوی الحنفیؒ فرمائی.

ومنها انهم کانوا یستعینون بغیر الله فی حوائجهم من شفاء المریض و غناء الفقیر وینذرون لهم یتوقعون نجاح مقاصدهم بتلک النذور ویتلون اسماء هم رجاء برکتها فاوجب الله تعالیٰ علیهم ان یقولوا فی صلوتهم ایاک نعبد وایاک نستعین وقال الله تعالیٰ فلا تدعوا مع الله احدًا ٥ ولیس المراد من الدعاء العبادة کما قال المفسرون بل هو الاستعانة لقوله تعالیٰ بل ایاه تدعون فیکشف ما تدعون[1]

دَ عربو دَ شرک یو قسم دا وه. چه دوی به دَ مریض دَ شفاء او دَ فقیر دَ غِنیٰ وغیره حاجتونو کښې دَ غیرالله نه امداد غوختو او دَ صالحینو په نوم به ئې منختے کولے. په دے خیال چه پدے منختو به مو حاجتونه پوره شی. او دَ بزرګانو نومونه به ئې په طور دَ ورد دَ برکت دَ پاره لوستل نو الله په مسلمانانو باندې په هر رکعت کښې ایاک نعبد وایاک نستعین لوستل مقرر کړل. او وے فرمائیل چه الله سره بل څوک مه بله. او دَ دعاء نه مراد عبادت نه دے بلکه امداد غوښتل دی. حُکم چه الله تعالیٰ فرمائی. چه خاص الله تعالیٰ او بلئ. نو ستاسو مصیبت به لرے کړی که چرے رضا ئے ... وشی.

[1] حجة الله البالغه طبع اصح المطابع کراچی صـ۱۲۶ ج۱ : ۱۲

علماؤ دَ اسلام هم دا قسم بلنه (دعاء غائبانه برائے استمداد غائبانه) ناجائز او دَ شرک په اقسامو کښې شمارلے دَه. شاه ولی الله رحمه الله فرمائی،

(١) واعلم ان طلب الحوائج من الموتیٰ عالمًا بانه سبب لانجاحها كفرٌ يجب الاحتراز عنه تحرم هذه الكلمة. والناسُ اليومَ فيها منهمكون[١]

چونکه شه چه دَ مړو نه په دے عقیده باندې طلب دَ حاجتونو کول چه دا طلب او بلنه دَ حاجتونو دَ پوره کیدو سبب دے کفر دے. ځان ترے ساتل واجب دی او کلمه شهادت دَ دے منع کوی. لیکن ډیر خلق دَ زمانه کښې په دے مرض کښې ترفتار دی.

دَ شاه صاحب مشهور او ممتاز شاگرد بیهقی وقت حضرت مولانا قاضی ثناء الله پانی پتی الحنفی المتوفی سنه ١٢٢٥ھ فرمائی.

(٢) (مسئله) وه جو بعض جاہل لوگ کهتے ہیں "یا شیخ عبد القادر جیلانی شیئًا لله" یا یوں کهتے ہیں که "یا خواجه شمس الدین پانی پتی شیئًا لله" یه جائز نہیں بلکه شرک اور کفر ہے[٢]

بعض جاهلان چه دا وائی چه "اے لویه ځوانه دَ خدائی دَ پاره خیر راکه" یا "اے خواجه صاحبه دَ خدائی دَ پاره خیر راکه" نو دا جائز نه دی. بلکه شرک او کفر دے.

حضرت شاه عبد العزیز محدث دهلوی رحمة الله علیه فرمائی.

(٣) بعض ان میں سے وه ہیں که واسطے دفع بلاؤں کے دوسروں کو بلاتے ہیں[٣]

دَ مشرکانو نه بعض هغه دی چه دَ مصیبت په وخت کښې دَ الله نه سوا بل څوک بلی.

شاه ولی الله صاحب په "البلاغ المبین" کښې فرمائی.

(٤) بعضے وظیفه "یا بهاؤ الدین مشکل کشا" در نشست و برخاست اشتغال داشته خود را از محبان حضرت بهاؤ الدین رح شمرده اند و بعضے برائے کشائش رزق "یا نظام الدین اولیاء زری بخش" ورد نموده اند و گروهے اختراع کرده اند که از برائے هر مهم ورد "یا شیخ عبد القادر شیئًا لله" کفایت مے کند. خبردار باید شد که همه افتراء و بهتان است مثل این معنیٰ اصلاً از اهل طریقت

بعض خلق هر وخت دَ "یا بهاؤ الدین مشکل کشا" وظیفه کوی. او ځان ته دَ حضرت بهاؤ الدین رح عاشقان وائی. او بعض دَ رزق دَ زیاتیدو دَ پاره "یا نظام الدین اولیاء زری بخش" وظیفه کوی.

او بعضے خلقو دا خبره راایستلے ده. چه دَ هر مصیبت دَ پاره دَ "یا شیخ عبد القادر جیلانی شیئًا لله" وظیفه ستاسو کافی دی. خبردار شه چه دا ټولے خبرے دروغ دی. او په صحیح طریقت کښې دَ دے

مُستقیم روایات نمی کنند و از مردم ثقہ مروی نشدہ است[1]۔

ثبوت نشته دے۔ او د معتمدو خلقو نه د دے خبرو نقل نه دے شوے۔ اھ

شیخ الاسلام مجددِ دوقت حضرت تقی الدین احمد ابن تیمیہ الحرانی المتوفی ۷۲۸ھ فرمائی۔

(۵) فھٰذہ الانواع من خطاب الملٰئکة والانبیاء والصالحین بعد موتھم عند قبورھم وفی مغیبھم خطاب تماثیلھم ھو اعظم انواع الشرک الموجود فی المشرکین من غیر اھل الکتاب وفی مبتدعة اھل الکتاب والمسلمین الذین احدثوا من الشرک والعبادات مالم یأذن بہ اللہ ولیس ھو واجبًا ولا مستحبًا باتفاق المسلمین ولا فعله احدٌ من الصحابة ولا التابعین لھم باحسانٍ ولا امر به امام من ائمة المسلمین فھٰذا کله من الشیطٰن[2]۔

پس دا قِسمونه یعنی بلل د ملائکو او د پیغمبرانو او د نیکانو بندیانو پس د مرګ نه او د لرے نه۔ او د دوئیم نوم جوړشوی تصویرونو ته خطاب کول دا هغه لوئ شرک دے چه په هغه مشرکانوکښ هم موجود دے۔ کوم چه اهل کتاب نه دی او د اهل کتابو په بدعتیانوکښ هم موجود دے۔ او د مسلمانانو په هغه کسانوکښ هم موجود دے۔ کوم چه د شرک او د عباداتو نوے نوے طریقے را اوباسی۔ او دا بلل غائبانه نه واجب دی او نه مستحب په اتفاق د مسلمانانو سره۔ او دا کار نه صحابو وُکړے دے او نه تابعینو او نه د دے حکم یو امام کړے دے د امامانو د مسلمانانو نه نو دا ټول کارونه په وسوسے د شیطان لعین سره دی۔

رونړو!۔ د دے بحث نه چه ذکر کړے شه۔ تاسو ته د نمر په شان واضح شوه۔ چه بے د اللہ نه بل چاته په وخت د سختئ کښ د امداد د پاره غائبانه طور باندِ بلنه ناجائزه ده۔ او په دے باندِ قرآن کریم احادیث د رسول کریم اقوال د علماؤ شاهد دی۔ لیکن سره د دے نه حافظ کفایت اللہ صاحب فرمائی۔ چه داوئیل چه اے بابا ته ماته ولد راکړه۔ یا ته دا کار اوکړه بالکل جائز دی۔ او دا نسبت مجازی دے۔ حافظ صاحب دراصل په دا سے خبرو کښ د خپلو هغه مشرانو په نقش قدم روان دے چه وائی۔

بگرداب بلا افتاد کشتی ؛ مدد کن یا معین الدین چشتیؒ ؛
امداد کن امداد کن از بند غم آزاد کن ؛ در دین و دنیا شاد کن یا شیخ عبد القادرؒ ؛

[1] البلاغ المبین ص ۹۳
[2] کتاب التوسل والوسیلة ص ۱۸ مصری ؛

دَ بریلیانو پیشوائے اعظم احمد رضا خان علیه ما علیه وائی.

حضور ہر قسم کی حاجت روائی فرما سکتے ہیں. دُنیا و آخرت کی مرادیں سب حضور کے اختیار میں ہیں۔[۱]

بلکه دا حضرت صرف حضور صلعم مختیار او مدبّر نه منی. بلکه هم دغه مرتبه حضرت رئیس

الموحدین امام اهل سُنت شیخ عبد القادر جیلانی حنبلیؒ ته هم ورکوی نه

ذی تصرف بھی ہے ماذون بھی مختار بھی | کار عالم کا مدبر بھی ہے عبد القادرؒ[۲]
نه احد سے احمد اور احمد سے تجھکو | کن اور سب کن مکن حاصل ہے یا غوث[۳]

(نعوذ بالله من هذه الخرافات والشرکیات والحمد لله علٰی أن عافانا الی الآن عنها حمدًا کثیرًا ونشکره علیها شکرًا خطیرًا۔)

حافظ صاحب موصوف دا سے مشران او پیشوایان لری. نو دا سے خبرے به ولے نه کوی. اَلْإِنَاءُ يَتَرَشَّحُ بِمَا فِيهِ. دَ لوښی نه هم هغه شئ راوځی چه پکښں وی.

چونکه حافظ صاحب او دَ هغه مشر احمد رضا خان دَ نسبت مجازی او دَ واسطه فی الثبوت ذکر کړے دے. او دا ئے دَ خلقو دَ پاره یوه تکیه او سهارا جوړه کړے ده. په دے وجه دَ دے فلسفے اظهار هم ضروری گنړم. اګر که دا دَ حافظ صاحب فرض وو. ځکه چه مونږ خو دَ خپل مدعٰی دَ پاره په قرآن او حدیث او په اقوال دَ علماؤ باندے استدلال کړیدے. او په دے کښں دَ حقیقی او دَ مجازی فلسفه نشته دے. بلکه تمام دلائل مطلقًا دَ دے تصرف او ندا نفی کوی.[۳] لیکن کچرے مونږ دَ نسبت مجازیه دَ فلسفے نه جواب او نه کړو. نو بیا به دا پروپګنډه کیږی. چه دوی دَ سره دَ علم معانی په قواعدو نه پوهیږی. دَ دے وجه نه زه دوی ته دَ دے پروپګنډے کولو موقع هم نه ورکوم.

## بحث دَ نسبت مجازی او دَ واسطه فی الثبوت

حافظ صاحب دَ واسطه فی الثبوت ذکر نه دے کړے. بلکه صرف دَ نسبت مجازیه دعوے ئے کړیده. دَ دے وجه نه دَ نسبت مجازی تشریح پیش کیدے شي.

عربی ادب او دا رنګے په هره ژبه کښں دَ یو فعل نسبت او اسناد دوه قسمه دے. یو حقیقی او بل مجازی. نسبت حقیقی اسناد دَ فعل یا دَ شبه فعل دے هغه ذات ته چه دا فعل

[۱] برکات الامداد ص۸ و ملفوظ حصه چهارم ص۱۲ [۲] حدائق بخشش ص۱۹ [۳] حدائق بخشش حصه ۳ ص۸

[۳] یعنی نفی دَ تصرف او دَ ندا غیبی ۱۲

هم ده هغه نه صادر یا په هغه پورې قائم وي. لکه شَفَى اللّٰهُ الْمَرِيْضَ (الله تعالیٰ مریض ته شفا ورکړه) اَغْنَى اللّٰهُ الْفَقِيْرَ (الله تعالیٰ فقیر او محتاج مالدار کړ) اَعْطَاهُ اللّٰهُ وَلَدًا (فلانی ته الله تعالیٰ ځوئ ورکړ)

او نسبت مجازي نسبت د فعل دې هغه چا ته چه دا فعل نه د هغه نه صادر وي او نه په هغه پورې قائم وي. بلکه په صدور او قیام د فعل کښې د دې ذات څه نه څه تعلق وي. مثلاً دا د هغه فعل د پاره زمانه د وقوع یا محل د وقوع (ظرف) وي. لکه اَنْبَتَ الرَّبِيْعُ الْبَقْلَ سپرلي ترکاري او شنه شنه بوټي پیدا کړل. یعني الله تعالیٰ د سپرلي په موسم کښې ترکاري پیدا کړه. یا دا د اصل فاعل نه د صدور یا د قیام فعل د پاره سبب او واسطه وي. لکه بَنَى الْاَمِيْرُ الْمَدِيْنَةَ بادشاه ښاریه جوړه کړه. یعني د باشاه د حکم او امر په وجه کیلکارانو او مزدورانو جوړه کړه.

د دې وضاحت نه پس اُس دا غور اوکړئ. چه یو سړې یو مړی یا غائب کس ته وائي چه اے بابا حما دا کار اوکړه. نو دلته بغیر د سبب او واسطے نه بله وجه د ملابست د اصل فاعل سره نشته دے. یعني په دے قول سره به د قائل مطلب هم دغه کیدے شي. چه اے فلانیه ته حما د دغه کار د پاره سبب جوړ شه. یعني د الله په دربا کښې حما د دغه دینوي کار د پاره دُعا او سفارش اوکړه. نو په دے صورت دا خبره کونکے د دے مړي یا د غائب متعلق به دوه عقیدے ضرور ساتي.

(۱) یوه عقیده دا چه دا مړے او غائب حما د اخبره او آواز اوري اگرکه اسباب عادیه د اوریدو نشته دے. او حما په حال او مصیبت پوهیږي. ځکه چرے هغه د ده خبره نه اوري او د ده په حاجت د هغه علم نه وي. نو دے به د ده په حق کښې دُعا او سفارش څرنګه اوکړي. او چه سفارش او دُعا و نکړي نو سبب او واسطه به څرنګه جوړ شي. او چه واسطه او سبب اونکړي. نو نسبت مجازي به څرنګه صحیح شي. فافهم ایها الفطن.

حالانکه په بحث سابقه کښې بالتفصیل په دلائلو سره دا ثابته شویده. چه غائبانه طور باندې اوریدل د الله خاصه ده. او مړے نه اوري او نه د چا په حال پوهیږي. وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ. وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُوْنَ

(۲) او دویمه عقیده به یے دا وي. چه دوي حمو دنیوي حاجتونه د الله نه بذریعه د سفارش

سره پوره کولے شي. حالانکه بعینه هم دغه عقیده د مشرکانو د عربو وه. او الله تعالیٰ د دے عقیدے تردید کړے دے.

نو هرکله چه علاقه د نسبت مجازیه یعني سببیت ختم شوه. نو نسبت مجازي هم ختم شه. او نسبت حقیقیه خو شته دے نه. نو دا خبره چه ته دا کار او کړه یو مهمل او لغوه خبره شوه او خطره په دے خبره کښ د معنی شرکي شته دے. او دا د شریعت عامه قاعده ده چه کوم لفظ چه موهم یا محتمل د غلطے معنی وي. نو د هغه پرېښودل پکار دي.

نو زه نه پوهېږم چه حافظ صاحب د دے خبرے د اثبات د پاره دومره زور ولے لګوي آیا دا قسم بلنه څه فرض واجب یا مستحب ده؟ او که چا د الفاظ او نه وے. نو هغه به د الله مجرم شي څه؟ چه ته دومره پد ے کلک یې. حافظ صاحبه! ته خو به د خپل علم په زور د نسبت مجازیه په آړ کښ (حالانکه دا هم نشته دے. بلکه دا یوه لغوه خبره ده) ځان د شرک نه بچ کړے. خو عوام عاجز به شرکي عقیده وکښ ګرفتار کړے. نو خدائ د پاره دا دُعاګانے خلقو ته مه خایه. بلکه ادعیه ماثوره یقینیه ور ته خایه.

**اِسۡتِشۡفَاعُ** لپاره په وخت د مصیبت کښ لکه څرنګے چه خپله دعا کول او فریاد کول یو بهترینه وسیله ده. دغه رنګے د بل مسلمان نه هم د ځان د پاره دعا غوښتل یو بهترینه وسیله ده. عامه ده که دا مسلمان د دُعا غوښتونکی نه غوره وي او که خکته وي. او که برابر وي. او پدے خبره کښ د اهل سُنّت هیڅ اختلاف نشته دے. چه دُعا د صالحینُ وسیله د حل د مشکلاتو ده. ضرورت خو نشته خو بیا هم یو څو دلائل واورئ.

(۱) اول دلیل خو هم هغه آیت دے. چه حافظ صاحب د توسل مطلق د پاره دلیل ګرځولے دے. حالانکه هغه صریحي طور باندې په "توسُّل بالدُّعاء" باندې دلالت کوي.

وَلَوۡ اَنَّهُمۡ اِذۡ ظَّلَمُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ جَآءُوۡكَ فَاسۡتَغۡفَرُوا اللّٰهَ وَاسۡتَغۡفَرَ لَهُمُ الرَّسُوۡلُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيۡمًا ۝ (نساء ع ۹ پ ۵)

کچرے دوئ را غلے وے تا ته (ای محمدؐ) څه وخت چه دوئ نه ګناه شوے وه. او دوئ خپله هم د ځان د پاره د الله نه بخښنه غوښتے وے او رسول ص هم دوئ د پاره د الله نه بخښنه غوښتے وے نو مومندلے به وه دوئ الله تعالیٰ معافي کونکے او مهربان.

د دے آیت مطلب دومره واضح دے چه بیان ته یې څه ضرورت نشته دے. د دے آیت

قبل دَ یو یهودي او دَ منافق یوے مقدمے ته اشاره شوے ده. چه دَ دے مقدمے دَ فیصلے دَ پاره یهودي دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نوم تجویز کړے وه. او منافق سره دَ دے نه چه مونږ ته ئے نبي علیه السلام پیے کول. او په ظاهر کښې مسلمان وه. دَ کعب بن اشرف نوم ئے پیش کړے وه. نو الله فرمائي.

چه دا ډیره بده خبره ده. چه ځان ته مسلمان وائي او دَ فیصلے دَ پاره دَ شرعي عدالت نه مخ اړوي ئے. حالانکه ما پیغمبر هم دے دَ پاره درلیږلے دے چه دَ ده تابعداري اوکړے شي. نو تاسو دَ ده تابعداري کوئ. او که په دے تابعدارئ کښې درنه څه کمے اوشي. یعني څه ګناه. نو تاسو له پکار دي. چه سمه په اخلاص او ندامت سره دربار نبوي ته حاضر شئ. او ځپله هم دَ ځان دَ پاره بخښنه او معافي اوغواړئ. او دَ پیغمبر نه هم دَ خپل ځان دَ پاره دَ دُعا کولو او بخښنے غوښتلو درخواست اوکړئ. نو الله تعالی به درته معافي اوکړي. او مزید مهرباني به هم درباندے اوکړي.

پس صافه معلومه شوه چه دلته مراد استشفاع او طلب دَ دُعا دَ ژوندي نه دے او دا خبره بالکل ثابته ده.

(۲) حضرت عمر رض فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي. چه دَ یمن دَ طرف نه به تاسو ته یو سړے راشي. چه په یمن کښې به دَ ده نه بغیر دَ یوے مور نه بل څوک نوي پاتے شوي. او دَ ده په بدن تول سپین وو. نو ده دَ الله نه دُعا اوکړه. نو الله بغیر دَ یوے روپۍ یا دَ یوے اشرفۍ هومره ځائ نه تول بدن نه ئے سپین والے لرے کړے دے. او ده ته اویس رح وائي.

فمن لقیه منکم فیستغفر لکم وفي روایة قال لعمر رض فان استطعت ان یستغفر لک فافعل (وقال النووي رح) وفیه استحباب طلب الدعاء والاستغفار من اهل الصلاح وان کان الطالب افضل منهم[1]

نو ستاسو نه چه څوک هغه سره ملاؤ شي. نو بخښنه دِ او غواړي ستاسو دَ پاره. او یو روایت کښې داسے دي. چه حضور ص حضرت عمر رض ته اوفرمایل چه که طاقت دِ وي چه دَ ده نه بخښنه او غواړې تا دَ پاره نو دا کار اوکړه، امام نووي رح فرمائي چه دَ دے نه معلوم شوه چه دَ نیکانو خلقو نه دعا غوښتل مستحب دي. اګر که دعا غوښتونکے غوره وي دَ هغوی نه. اه

(۳) حدیث دَ اعمیٰ هم دَ دے دَ پاره دلیل دے. ځکه چه اعمیٰ (ړوند) دَ حضور صلعم نه دَ هغوي په ژوند کښې دَ دُعا غوښتلو درخواست اوکړ. او حضور ص ورته اووے چه اودس

[1] مسلم مع النووي ص۳۱۱ ج۲ ؛

اوکه او دا دُعا اوکه چه اے الله زه دَ پیغمبر دعا ستا دربار ته وسیله گرځوم. ته ځما په حق کښې دَ پیغمبر ص دُعا قبوله کړې. (تفصیل دَ روایت عنقریب ذکر کیدے شی)

(۴) حضرت عمر رض یو ځل دَ عمرے دَ پاره مکے شریفے ته روان شه. نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ رخصت کولو په وخت کښې ورته او فرمایل چه.

اَشْرِکْنَا یَا اُخَیَّ فِیْ دُعَائِکَ وَلَا تَنْسَنَا[۱] اے ځما خوګه رورهٔ مونږ په دعا کښې شریک کړه او مونږ مه هیروه.

دَ دے خبرے دلائل ډیر دی. لیکن دا خبره په اصل کښې محل دَ نزاع نه دے. په دے وجه دَ ډیر تفصیل ضرورت نشته.

شیخ الاسلام علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی. چه دَ توسُّل درے[۲] مطلبه کیدے شی.

(۱) "توسل بالایمان والطاعة" یعنی ایمان او عمل صالح او دَ شریعتِ اسلامی اتباع.

(۲) "توسل بالدعاء والشفاعة فی الدنیا" یعنی په دنیا کښې دَ چا نه دَ دُعا او دَ سفارش کولو درخواست کول. دَ دے دوؤ[۲] قسمونو متعلق فرمائی.

متفق علیهما بین المسلمین ومن انکر التوسل به باحد هذین المعنیین فهو کافر مرتد یستتاب والا قتل مرتدا

دَ دے دوؤ قسمونو په جواز باندې دَ ټولو مسلمانانو اهل قبله اتفاق شوے دے. او څوک چه په نبی علیه السلام باندې دَ دے دوؤ قسمونو کښې دَ یو قسم توسُّل نه انکار او کی (اعتقاداً مع العلم) نو دے کافر او مرتد شه. توبه دِ او باسی او که توبه نه کوی نو مرتد دِ او وژلے شی.

(۳) او دریم قسم "توسُّل بالشفاعت دے په ورځ دَ قیامت کښې" دَ دے متعلق فرمائی

فمذهب اهل السنة والجماعة وهم الصحابة والتابعون لهم باحسان وسائر ائمة المسلمین الاربعة وغیرهم ان له شفاعات یوم القیمة خاصة وعامة وانه یشفع فیمن یاذن الله له ان یشفع فیه من امته من اهل الکبائر[۳]

مذهب دَ اهل سنت والجماعة چه صحابه کرام او تابعین او ائمه اربعه او باقی علماء دی. دا دے چه په ورځ دَ قیامت کښې به رسول الله صلعم مختلف شفاعتونه کوی. خاص او عام (یعنی دَ حساب دَ شروع کولو شفاعت) او دوئی به دَ الله په اجازت سره دَ خپل امت دَ گناه گارانو دَ پاره شفاعت کوی. اھ

شیخ الاسلام رح دَ معتزله وغیره چه دَ شفاعت نه منکر دی. دلائل او دَ دے دلائلو مکمل جوابات او دَ اهل سنت دلائل ئے په بل ځائی کښې په تفصیل سره بیان کړی دی.[۳]

---

[۱] ابوداؤد ص۲۱۰ ج۱ وترمذی ص۱۹۵ ج۲ ومسند طیالسی ص۲ وابن سنی ص۱۳۴ [۲] التوسل والوسیلة ص۱۳ و۱۴ [۳] ص۵ او گورئ "التوسل والوسیلة" ص۱۰ تا ص۱۱ مصری ۱۲

# وسیلهٔ اجابتِ دُعاء

دَ حاجتونو دَ پوره کیدو آخری وسیله دُعاء ده- خواه پخپله اوکړے شی او دا ډیره بهتره ده. او که دَ بل چا صالح مسلمان نه دَ دُعا کولو درخواست اوکړے شی. چه دا هم دَ فائدے نه خالی نه دے- لیکن چونکه دا ضروری خبره نه ده چه الله تعٰ دِ دَ ده هره دُعا قبوله کړی- یعنی حاجتِ دنیوی ئے پوره کړی (حکه چه ثواب خو یې هره یوه دُعا بشرائطه ملاویږی) دَ دے وجه نه مونږ دا سے قسم وسائلو ته هم محتاج شُو چه دَ قبولِ دُعا دَ پاره دربارِ الٰهی ته پیش کړے شی

په مقدمه کښ دا قاعده بیان شوے ده- چه عبادات او کیفیاتِ عبادت عقلی او قیاسی نه دی- بلکه نقلی او توقیفی دی- یعنی کوم عبادت چه په کوم طریقه منقول وی- هغه هم په هغه طریقه بانِدِ کول لازم دی- هیڅوک دا اکرکه مجتهد وی ځان نه نه خو نوے قسم دَ عبادت ایجاد کولے شی او نه دَ دغے عبادت نوے نوے طریقے جاری کولے شی- او چونکه دُعا هم عبادت دے. دَ دے وجه نه مونږ له پکار دی- چه دَ وسائلو دَ اجابتِ دُعا او دَ طریقو دَ دعا په معلومولو کښ کتولو نه اول قرآن کریم او سُنّت رسول الله صلی الله علیه وسلم او آثارِ صحابه ته توجه اوکو- په دے سلسله کښ دَ کتلو نه اول مونږ له دَ قرآن کریم په هغه اولنی سورة بانِدِ غور پکار دے چه دَ هغے په نومونو کښ یو نوم "تعلیم المسئلة" هم دے. یعنی هغه سورت چه په هغے کښ دَ سوال او دَ دعا طریقه ښودلے شوے ده.

الحمد لله رب العٰلمین.
الرحمٰن الرحیم. مالک یوم الدین.
ایاک نعبد وایاک نستعین.
اهدنا الصراط المستقیم.
صراط الذین انعمت علیهم
غیر المغضوب علیهم ولا
الضالین.

ټول کمالات (حقیقیه) خاص الله لره دی چه مالک او پالونکے دَ ټول مخلوق دے. چه مهربانه او بخونکے دے. چه اختیارمند دَ ورځے دَ قیامت دے. اے الله مونږ خاص ستا عبادت کوُو او خاص تا نه امداد غواړو (دَ ده وسیله په وجه) مضبوط او ساته مونږ په صحیح لار بانِدِ چه لار دَ هغه کسانو ده چه تا ورباندِ مهربانی کړیده او هغوی باندِ نه ستا غضب شوے دے او نه هغوی گمراهان دی.

په دے سورة کښ اول اجمالی طور باندِ په "الحمد لله" کښ دَ الله تعالیٰ په ټولو

صفاتو کاملو باندې د موصوف کیدلو اقرار دے. او بیا تفصیلاً د صفت ربوبیت رحمت - مالکیت ذکر دے - او بیا په ایاک نعبد کښ - د بنده د خپل عبدیت او د عبادت کولو اقرار او وعده کړیده. او په ایاک نستعین کښ د خپلے محتاجے او د فقر اقرار او صرف د الله تعالیٰ د مستعانیت اعتراف شوید مے - او د دے نه بعد انسان په خپلو حاجتونو کښ اعلیٰ او اشرف حاجت او مقاصدو کښ اشرف مقصد د الله په دربار کښ په دے الفاظو سره پیش کړے دے - چه اهدنا الصراط المستقیم الایه

نو په دے سورت کښ وسیله د اجابت دعا درے څیزونه بیان شوی دی.

(۱) اسماء او صفات حسنیٰ د الله تعالیٰ: یعنی داچه انسان د خپلے دعا نه قبل د الله تعالیٰ د صفتونو او د نومونو ذکر اوکی. او الله تعالیٰ ته اووائی - چه اے الله ته د دغے خپلو صفتونو او نومونو په وسیله زما دا کار اوکړے.

(۲) عبادت او عمل صالح. عام دے که عمل ظاهری وی لکه مونځ روژه وغیره شو یا عمل باطنی وی. لکه ایمان او محبت الٰهی یا محبت د صالحینو سره د خدای د پاره. یعنی داچه انسان د دعا نه مخکښ خپل عبادت ذکر کړی. او اووائی. چه اے الله زما د دے عبادت او عمل په وجه او وسیله سره زما کار اوکړے.

د دے دوؤ قسمونو متعلق علامه ابن القیم رح فرمائی.

| | |
|---|---|
| فهاتان وسیلتان الیٰ مطلوبهم | نو دا دوه وسیلے دی د مسلمانانو د مطلوب (هدایت) |
| توسل الیه باسمائه وصفاته وتوسل | حاصلولو د پاره - یو توسل دے په اسماء او صفات د |
| الیه بعبودیته وهاتان الوسیلتان | الله سره - او بل توسل دے په عبادت خپل سره. |
| لایکاد یرد معهما الدعاء[1] | او دے دواړو سره قریب نه دی چه دعا رد کړے شی |

## سوال بالاسم الاعظم

توسل بالاسماء والعبودیة ته په ډیر روایاتو کښ توسل او سوال بالاسم الاعظم وئیلے شوی دی.

| | |
|---|---|
| (۱) عن بریدة رض ان رسول الله صلی | رسول الله صلی الله علیه وسلم یو سړی نه واوریده |
| الله علیه وسلم سمع رجلاً یقول اللهم | چه داسے دعا ئے کوله. چه "اے الله زه ستا نه سوال کوم |
| انی اسئلک بانک انت الله لا اله الا انت | په دے وسیله چه ستا نه بغیر بل څوک معبود او کارساز |
| الاحد الصمد الذی لم یلد ولم یولد | نشته دے. ته یو او بے نیازه یے نه ستا نائب شته په انتظام عالم کښې او نه ستا ناټه شته |

[1] مدارج السالکین ص۱۵ ج۱

ولم یکن له کفوًا احد. فقال دعی الله باسمه الاعظم الذی اذا سئل به اعطٰی واذا دعی به اجاب[۱]

او ستا مثل څوک نشته دے" نو نبی علیه السلام او فرمایل دے سړی د هغه "اسم اعظم" په وسیله سره دعا اوکړه چه څه وخت په دے سره څوک او غوښتے شی نو ورکولے شی او په دے سره دعا قبلیږی

(۲) عن انس رض قال کنت جالسًا مع النبی صلی الله علیه فی المسجد ورجل یصلی فقال اللّٰهم انی اسئلک بان لک الحمد لا اله الا انت الحنان المنان بدیع السمٰوٰت والارض یاذا الجلال والاکرام یاحی ویاقیوم اسئلک فقال النبی صلی الله علیه وسلم دعی الله باسمه الاعظم الذی اذا دعی به اجاب واذا سئل به اعطٰی[۲]

انس رض فرمائی چه زه د نبی علیه السلام سره جماعت کښې ناست وم. او یو سړی په مانځه کښې دا سے دعا اوکړه اے الله زه په دے وسیله سوال کوم چه هم تا لره ثنا ده. تا بغیر بل څوک معبود نشته دے. ته ډیر مهربان او احسان کونکے یې پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے یې اے د عظمت او د احسان مالکه. اے تل او ابدی بادشاه. اے انتظام کونکیه د ټول جهان. زه ستا څخه مقصد غواړم" نو نبی علیه السلام او فرمایل. دے سړی د الله نه د هغه اسم اعظم په وسیله دعا اوکړله چه دا سے دعا نه رد کیږی. اهـ

(۳) ترمذی. نسائی. حاکم. بیهقی وغیره کتابونو کښې د سعد بن ابی وقاص رض په روایت کښې دعاء یونس علیه السلام ته هم دعا بالاسم الاعظم ویلے شوې ده. دُعا د یونس علیه السلام دا ده چه.

لا اله الا انت سبحانک انی کنت من الظٰلمین ؂

اے الله ستا نه بغیر بل څوک معبود او کارساز نشته دے. ته پاک یې د شریکانو نه پدے صفت کښې یقینًا زه وم زه غلطی کونکو نه اهـ

د دے قسم ډیر روایات دی. چه د هغے نه معلومیږی. چه بهترینه وسیله اسماء او صفات د الله تعالیٰ دی. او اقرار دے په توحید د الله تعالیٰ او په عبودیت خپل سره بلکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د خولے مبارکے نه وتلے اکثرو دُعاګانو کښې دا وسیله ذکر شوې ده.

دا دُعاګانے "الحصن الحصین"، او مشکوٰة "کتاب الادعیه"، او ابن ماجه وغیره کتابونو کښې چه اوګورئ. نو دا خبره به درته بالکل یقینی طور سره ثابته شی. چه د اسماؤ او د صفاتو د الله تعالیٰ نه او د اقرار د توحید و عبدیت نه

۱ له مشکوٰة ص۲۱۶

(۱) حصن حصین ص۳۲ (بحواله سنن اربعه و ابن حبان و حاکم و احمد) ۲ له ابن ماجه ص۲۸۳ و مشکوٰة ص۲۱۶ (بحواله ترمذی ابوداود نسائی ابن ماجه) ۳ حصن حصین ص۳۵ (بحواله سنن اربعه و ابن حبان و حاکم و احمد و ابن ابی شیبه)

بلکہ بهترینه وسیله دَ اجابت دعا دَپاره نشته دے او نه عقلاً او شرعاً کیدے شی هم داوجه ده. چه اکثر دعاګانے په لفظ دَ رَبِّ او دَ اَللّٰهُمَّ سره شویدی. چه په اول کښ توسل دے په صفت دَ "ربوبیت" سره. او په دویم کښ توسل دے اجمالاً په جمیع صفاتو الٰهیوٴ سره.

**نکته په معنیٰ دَ اللّٰهم کښ** داخبره چه په لفظ دَ اللّٰهم کښ اشاره ده تولو صفاتو الٰهیوته. دَ دے تفصیل محتاج دے او هغه دا دے.

په دے کښ خو اتفاق دے چه معنیٰ دَ اَللّٰهم یاالله دے. لیکن په دے خبره کښ علماء نحو مختلف دی. چه "میم مُشدّد ده" په آخر دَ اسم دَ الله کښ دَ څه دَپاره راوړے شوید ے په دے کښ درے مذهبه دی.

(۱) دَ سیبویه رح او دَ خلیل رح مسلک دا دے. چه دا عوض دَ یاء حرف نداء دے. او دَ دے وجه نه بغیر دَ ضرورت شعری نه په اَللّٰهم باندے دخول دَ حرف نداء جائز ندے. دَ پاره دَ دے چه جمع په مابین دَ عوض او دَ معوض عنه کښ رانشی. عام نحات دَ بصرے هم دغه مسلک غوره کړے دے. او څونږ دَ ملک په متداول کتابونو کښ عام طور سره هم دغه مسلک ته ترجیح ورکړے شوے ده.

دَ دے مسلک دلیل بغیر دَ دے نور نشته دے. چه عام طور سره په لفظ دَ الله باندے حرف نداء داخلیږی. لیکن په اَللّٰهم باندے په استعمال فصیح کښ نه داخلیږی. نو معلوم شوه چه ځکه نه داخلیږی چه عوض دَ دے په دے کلمه کښ موجود دے. او هغه میم دے لیکن زمونږ په خیال کښ دا څه مضبوط دلیل نه دے. ځکه چه دا څه ضروری خونه ده چه نه راتلل دَ حرف نداء دَ دے وجه نه وی چه میم ئے عوض دے. بلکه کیدے شی چه دَ میم زیاتول دَ بلے معنیٰ دَ پاره وی. او دَ حرف نداء نه داخلیدل دَ مبنی وی په عدم سماع باندے. فافهم.

(۲) دویم مذهب دَ امام فراء رح دے. دے وائی چه میم عوض دَ حرف نداء نه دے. بلکه عوض دَ جملے مقدره دے. چه هغه جمله مقصود بالنداء ده. او اصل عبارت داسے وه. یَا اَللّٰهُ اُمَّنَا بِخَیْرٍ (اے الله څونږ دَ خیر اراده اوکه) جار مجرور او مفعول به یعنی نا او بخیر حذف کړے شو دَ اختصار دَ پاره. نو یا الله اُمّ شو. نو بیا دَ کثرت دَ

استعمال ذوجہ نہ همزه هم حذف کړے شہ. نو یا اَللّٰهم شہ. په دے مذهب
باندے دَ بصریینُ دَ طرف نہ تقریبًا اَتَّلس اعتراضونہ شوی دی. چہ په دے کښې دوه
مضبوط اعتراضونه دا دی.

(۱) کچرے دا دَ مذکوره جملے نہ عوض وے. نو بیا پکار خو دا وو. چہ اَللّٰهُمَّ اُمّنا بخیر
ویٔل جائز نہ وے. ځکہ چہ جمع راځی په مابین دَ عوض او دَ معوض عنه کښې. حال
دا دے چہ داسے ویٔل بالاتفاق جائز دی.

(ب) کچرے میم دَ یا آ نہ عوض نہ وے بلکہ دَ دغے جملے نہ عوض وے. نو پکار دا وو چہ
یا اَللّٰهمّ ویٔل په کلام فصیح کښې بغیر دَ ضرورت شعری نہ جائز وے. ځکہ چہ جمع بین
العوض والمعوض عنه نہ راځی. حالانکہ دا جائز نہ دے.

(۳) دَ بعض علماؤ مذهب دا دے. چہ میم نہ عوض دَ یا آ دے او نہ دَ جملے مقدرے
بلکہ صرف دَ تعظیم او تفخیم دَ پاره په آخر دَ لفظ دَ الله کښې زیات کړے شوے دے.
علامہ ابن القیم رح په جلاء الافهام کښې دَ دے مذکوره دوو مذهبونو دَ نقل نہ
پس دے مذهب تہ صحیح ویٔلی دی. او دَ تفخیم و تعظیم تفصیل ئے داسے کړیدے
"دَ اساطین عربیت صحیح مسلک دا دے چہ دَ لفظ او دَ معنے په مینځ کښې ځمه مناسبت
ضرور وی. امام ابن جنی رح په خصائص دَ الفاظو او دَ حروف کښې یو مستقل باب
ذکر کړیدے. او دَ امام سیبویه رح نہ ئے دَ لفظ او معنیٰ په مینځ کښې دَ تناسب په
مختلفو قسمونو باندے استدلالات نقل کړیدی. ما پخپله په ډیرو موقعو باندے
دَ قوت لفظ او دَ تناسب حروف په بنا باندے دَ یو لفظ معنی متعینہ کړیده. او پس دَ
تحقیق لغوی نہ هغه معنی بالکل صحیح خته دہ. نو ما چہ دَ دے خبرے ذکر دَ
شیخ الاسلام ابن تیمیه رح په مخکښې اوکړه. نو هغه او فرمایل چہ دَ ابن جنی رح زوتیہ
بالکل صحیح دہ. او زه هم ډیر ځله دا کار کوم. (دَ دے نہ بعد دَ دے خبرے دَ
وضاحت دَ پاره ابن القیم رح ډیر مثالونه بیان کړی دی. بیا فرمائی) چہ میم حرف
شفوی دے او دَ دے دَ ادا په وخت کښې شونډے ضرور دَ یو بل سره جمع کولے شی
نو دا حرف علامہ دَ جمع دے. یعنی په کوم لفظ کښې چہ میم وی. نو په هغے کښې به ضرور
دَ جمعیت معنی او دَ اجتماعیت مفهوم ماخوذ وی. هم دا وجہ دہ چہ اَنْتُمْ هُمْ ضربتم

ایاکم وغیره کښې دَ جمعیت علامه میم اوګرځولے شو- هم دا وجه ده چه لَمَّ یَلُمُّ په معنی
دَ اجتماع راځي. بدر[۲] ته هغه سپوږمۍ ته وائي چه رڼا ئې سنه راجمع شوې وي.
التوأم[۳] هغه دوو بچو ته وائي چه یو حمل کښې جمع شوي وي. اُمّ[۴] مور ته وائي چه
دا جمع کونکے دَ اولاد وي او اصل دَ دوئي وي. مکے مکرمے ته اُمّ[۵] القری او سورت
فاتحے ته اُمّ[۶] القرآن او لوح محفوظ ته اُمّ[۷] الکتاب هم په دے وجه وائي.
امام[۸] هغه پیشوا ته وائي چه جمع کونکے دَ مقتدیانو په مانځه یا دَ رعیت په حکومت
کښې یا دَ مقلدینو په علمي تحقیقات کښې وي- وغیره.

نو دَ دے وجه نه حرف میم په آخر دَ لفظ دَ الله کښې راوړے شو چه دلالت اوکي
په جمیع صفات الهیه بانږ- نو دعا کونکے په لفظ دَ اللّٰهمّ سره به په اصل کښې دعا
کونکے وي په وسیله دَ ټولو صفاتو الهیه سره- او تلفظ دَ ده په اللّٰهمّ سره په اصل
کښې تلفظ وي په ((ادعوا الله الذی له الاسماء الحسنیٰ والصفات العلیٰ باسمائه وصفاته))
دَ دے وجه نه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائي چه څوک په وخت دَ غم او دَ مصیبت
کښې مندرجه ذیل دعا اوکي- نو الله تعالى به ئې غم لرے کړي- او په ځائ دَ غم کښې به ورله
خوشحالي ورکړي-

((اللّٰهم انی عبدک ابن عبدک ابن امتک. ناصیتی بیدک. ماضٍ فیّ حکمک. عدلٌ
فیّ قضاؤک. اسئلک بکل اسم هو لک سمیت به نفسک او انزلته فی کتابک او علمته
احدًا من خلقک واستاثرت به فی علم الغیب عندک ان تجعل القرآن العظیم ربیع قلبی
ونور صدری وجلاء حزنی وذهاب همی وغمی))[۱]

ابن القیم رح په آخر کښې وائي چه حمادا تحقیق دَ ډیرو سلف نه هم منقول دے- مثلاً
حسن بصری رح فرمائي. اللّٰهم مجمع الدعاء (لفظ دَ اللّٰهم جمع کونکے دَ ټولو دعاګانو دے ځکه
چه په دے کښې توسل دے په ټولو اسماؤ او صفاتو دَ الله تعالى سره.) ابو رجاء العطاردی رح
فرمائي- ان المیم فی قوله اللّٰهمّ فیها   دَ اللّٰهمّ په میم کښې دَ الله تعالى یو کم سل ۹۹ نومونه موجود
تسعة وتسعون اسمًا من اسماء الله تعالى   دي-
نضر بن شمیل رح وائي- من قال اللّٰهم   چا چه اللّٰهم او وے

له رواه ابن حبان رح واحمد رح والبزار رح عن ابن مسعود رض والحاکم رح وصححه وابو یعلیٰ رح فی مسنده- و فی مجمع الزوائد
رجال احمد وابو یعلیٰ رجال الصحیح و روی بالفاظ اخری عن ابی موسی الاشعری رض- حاشیه تفسیر قیم ص۲۱ وابن کثیر ج۲ ص۲۶۹

فقد دعی الله بجمیع اسماء کلہ[1] نو دہ ذاتہ تہ د ټولو نومونو په وسیلے سره دعا وکړه.

هم د دغے توسل بالاسماء امر الله تعالیٰ مندرجه ذیل آیت کښ کړیدے.

ولله الاسماء الحسنیٰ فادعوه بها وذروا الذین یلحدون فی اسمائه سیجزون ما کانوا یعملون. (اعراف ع۲۲ پ۹)

او الله تہ لره ښائسته نومونه دی. نو او غواړئ ذالله نه په وسیلے د دغے نومونو سره. او هغه کسان چه کجروی کړی د الله په نومونو کښ عنقریب دوئ ته به د دوی د عملونو جزاء ورکړے شی.

شاه صاحب فرمائی الیعنی الله نے اپنے وصف بتائے کہ مناجات میں وہ کہکر پکارو کہ تم پر متوجہ ہو. اور کج راہ نہ چلو. کج راہ یہ کہ جو وصف نہیں بتائے وہ کہے جیسے الله کو بڑا کہا ہے لمبا نہیں کہا. اور ایک کج راہ یہ ہے کہ ان کو سحر میں چلاوے وہ اپنے کئے کا بدلہ پائینگے یعنی قرب جنا نہ ملیگا وہ مطلب ملیگا بھلا یا برا. اھ[2]

**توسل بالاعمال** توسل بالاعمال هم په قرآن وحدیث سره ثابت دے. الله تعالیٰ فرمائی.

(۱) واستعینوا بالصبر والصلوٰة. (بقره)

امداد غواړئ ذالله تعالیٰ نه په وسیلے د ټینګ پاتے کیدو سره په دین باندے او خصوصاً په وسیلے د نمانځه سره.

(۲) علامه ابن القیم رح په مدارج السالکین کښ په ایاک نعبد وایاک نستعین کښ د عبادت د تقدیم نه ۹ وجوهات بیان کړی دی. او یو د هغے نه دا دے. چه عبادت وسیله او سبب دے. او استعانت مسبب دے. یعنی د دے وجه د تقدیم په بنا باندے معنیٰ داشوه چه اے الله مونږ خاص ستا عبادت کوو او د دے عبادت په وسیلے سره خاص ستا نه امداد غواړو. ابن القیم رح فرمائی.

وکلما کان العبد اتم عبودیة کانت الاعانة من الله اعظم.

چه څومره د بنده بندګی او عبادت کامل وی. نو د الله امداد به ډیر کیږی. اھ

(۳) ربنا اننا سمعنا منادیاً ینادی للایمان ان اٰمنوا بربکم فاٰمنا ربنا فاغفر لنا ذنوبنا وکفر عنا سیاٰتنا وتوفنا

اے ربه مونږ د یو داعی نه واوریدل چه د ایمان دعوت ئے ورکوو. تو مونږ ایمان راوړو. نو اے ربه مونږ ته بخښه اوکړے او مونږ له

---

[1] التفسیر القیم مرتبه محمد ادریس ندوی ص۲۵۲ (بحواله جلاء الافهام لابن القیم رح ۱۲)
[2] موضح القرآن بر قرآن کریم مترجم شیخ الهند رح ص۲۲۳

په دے کښې دَ دعا نه قبل دَ ایمان ذکر په طور دَ وسیلے سره شوے دے۔ چه دا بهترین عمل باطنی دے۔

(۴) بخاری او مسلم کښې دَ ابن عمرؓ نه روایت دے۔ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی۔ چه درے کسان یو ځل په لار تلل۔ چه باران ورباندِ راغے۔ دوئی یو غار کښې ننوتل نو دَ غار په خوله باندِ یو غټ کانړے رارپریوت او دَ وتو لارئے بالکل بنده کړه۔ نو دوئی یو بل ته او وے۔ چه خپل خپل نیک عمل رایاد کړئ او دَ هغے په وسیله دَ الله نه سوال اوکړئ۔ چه دا کانړے لرے شی۔ نو یو اووے چه اے الله تعالیٰ ما بوډا ګان والدین او ما شومان بچی وُو۔ او ما به دَ ورځے خپل او بنان سروِل او چه ماښام به راغلم نو اوبنے به مے اولوشلے او مور و پلار ته به مے اول پئے ورکړل۔ او خپلو بچو ته ورستو۔ یوه ورځ زه ناوخته راغلم چه مور و پلار مے اوده شوی وُو۔ نو ما اوبنے اولوشلے او دَ پیو لوښے مے په لاس کښې واخست او دَ والدین سرته اودریدم۔ ما هم بدګڼړل چه دوئی ویښ کړم۔ او دا هم راته ښه نه ښکاریده۔ چه ما شومانو ته اول پئے ورکړم۔ نو زه د غه شان تر سحره ولاړ وم او بچو مے چغے وهلے۔ نو اے الله که ما دا عمل ستا دَ رضا دَ پاره کړے وِی۔ نو دَ دے په وسیله سره مونږ نه دَ دے غار نه دَ وتو لار پیدا کړے نو یو سورے پیدا شه چه آسمان ترے نه ښکاریدو۔

او دَ دویم اووے چه اللهم دَ تره یوه لور وه۔ چه زه پرے ډیر مئین وم۔ نو ما ترے نه دَ نفس مطالبه اوکړه نو هغے راته اووے چه سل اشرفے راوړه نو هله به درلوره ځان درکوم۔ نو ما دَ ډیر کوشش نه پس دا اشرفے هغے ته پیش کړے۔ نو زه ورسره یو ځائ شوم حتیٰ چه دَ هغے خپے ته کیناستم۔ نو هغے راته اووے چه دَ خدائ نه اویریږه او مُهر بکر، مه ماتوه۔ نو زه فوراً لرے شوم۔ نو اے الله کچرے دا عمل مے ستا دَ رضا دَ پاره کړے وی۔ نو دَ دے په وسیلے سره مونږ ته دَ وتو لار اوباسه۔ نو لږ سورے نور اوشه۔

او دَ دریم اووے چه اے الله ما په یو اوږی دَ وریجو باندِ یو مزدور نیولے وه۔ چه ختم شه وخت دَ مزدور نه زدوری اوکړه۔ نو هغه ورپیجے ئے وانخستے او لاړ۔ نو ما به دا

کړلے ریبلے حتی چه د دے ډیرے غواګانے سره د سرونکو نوکرانو نه جوړے شوے - او چه څه وخت دا مزدور بیا راغے نو ما دا تولے غواګانے هغه ته اُسپارلے. نو اے الله که چرے دا عمل ئم ستا د رضا د پاره کړے وی. نو مونږ ته دا باقی ځائی هم خالی کړے نو باقی ځائی هم خالی شه[۱] (او دوی لاړل)

حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائی.

ازین حدیث معلوم شد استحباب توسل — د دے حدیث نه دا معلومه شوه چه په وخت د

بصالح اعمال درحالت شدة وکرب[۲] — سختئ کښ د نیکو عملو نو په وسیلے سره سوال کول مستحب دی

## توسل بالفقر والحاجة

دریم قسم وسیله د اجابت دُعا پیش کول د خپل فقر و احتیاج او د عاجزئ دے په دربار

د الله تعالے کښ. چه اے الله زه ستا فقیر او حاجتمند بنده یم او بغیر ستا نه ځما بل هیڅوک مددګار او کارساز نشته دے. او اګر که زه ډیر ګنهګار یم خو ستا بنده یم او بل ځائی د پناه ئم نشته دے. نو صرف ستا نه امداد غوارم.

نو درحقیقت اعتراف د ګناه او اظهار فقر و مسکنت ډیره لویه وسیله ده.

موسی علیه السلام چه د مدین کوهی ته سفر وهلے او د سخت مصیبت په حالت کښ او رسید و. نو اول ئے یو ډیر لوئی عمل صالح اوکړه. چه د کمزورو ښیبیانو سره امداد او کړه. او پس د هغے نه ئے د الله تعالے په دربار کښ خپله عاجزی او فقیری پیش کړله او وئے فرمایل.

رب انی لما انزلت الی من خیر فقیر. (القصص ۲۴) — اے ربه زه دے وخت کښ ستا فضل ته ډیر محتاج یم. ۱۰م

نو الله تعالے ورله د مصر نه بنه ځائی د استوګنے هم ورکه او مال و بیبی ئے هم ور کړل.

د اللهم، لفظ په بحث کښ چه کوم حدیث تیر شوے دے. یعنی (اللهم انی عبدک وابن عبدک الحدیث) د هغے نه هم دا وسیله معلومیږی. ځکه چه په دے کښ عبدیت او د خپلے عاجزئ او د بے اختیارئ اعتراف دے. او بیا د الله ته د عظمت اقرار دے. او په آخر کښ د خپل مقصد ذکر دے.

[۱] بخاری ص۲۹۳ و ص۳۰۳ ج۱ و ص۸۸۳ ج۲ و مشکوة ص۴۲۰ ج۲ [۲] لمعات شرح مشکوة ص۱۱ ج۳

## توسّل بالموعد

یو قسم د توسل د اجابت دعا د پاره په "وعدهٔ الٰهیه" باندې توسل کول دی. یعنې داوئیل چه اے الله تا وعده کړیده چه

زه د سوال کوونکو سوال قبلوم او عبادت کوونکو ته ثواب ورکومه. نو زه ستا دربار ته ستا دغه وعده وسیله ګرځوم. چه ته ځما د احاجت پوره کړے. د دے ثبوت هم په منډ رجه ذیل دلائلو سره کیږی۔

(۱) ربنا اٰتنا ما وعدتنا علٰی رسلک ولا تخزنا یوم القیٰمة انک لا تخلف المیعاد۔

اے ربه مونږ ته هغه نعمتونه راکړے چه تا ئے د خپلو پیغمبرانو په ذریعه ځمونږ سره وعده کړیده۔ او په ورځ د قیامت کښې مونږ مه رسوا کړے بے شک ته د خپلے وعدے نه بدلیږے

په دے آیت کښې د دعا د پاره صاف طور سره وعدهٔ الٰهیه وسیله ګرځولے شویده چه اے ربه مونږ ستا دربار ته د خپل مغفرت د پاره هم ستا وعده وسیله ګرځوو. او ځمونږ په دغه وعده باندې اعتماد دے. ځکه چه ته د خپلے وعدے نه خلاف نه کوے

(۲) ربنا اننا سمعنا منادیًا ینادی للایمان ان اٰمنوا بربکم فاٰمنا ربنا فاغفرلنا ذنوبنا وکفر عنا سیاٰتنا وتوفنا مع الابرار۔

سمعنا منادیًا ینادی للایمان کښې وعدهٔ الٰهیه ته اشاره ده. چه اے الله ستا پیغمبرانو په مونږ ته د ایمان دعوت راکړو او په دے ایمان باندې د مغفرت او د ثوابونو وعدے هم ئے راته یاد ولے. نو مونږ ایمان راوړو. نو اے الله مونږ تا ته خپل ایمان او ستا وعده وسیله ګرځوو چه ځمونږ ګناهونه معاف کړے۔

(۳) حضرت عمر رض به کوه صفا باندې دا دعا کوله. چه

اللّٰهم انک قلت وقولک الحق ادعونی استجب لکم وانک لا تخلف المیعاد. وانی اسئلک کما هدیتنی للاسلام ان لا تنزعه منی حتی تتوفانی وانا مسلم[1]

اے الله تا فرمائیلی دی او ستا وینا رشتینې ده. چه ما نه غواړئ زه به ستا سو دعا قبلوم. او بے شکه ته د خپلے وعدے نه بله نه کوے. نو زه سوال کوم چه لکه څرنګ تا ما ته د اسلام د قبول توفیق راکړے دے. دغه رنګے ما په دے اسلام کلک کړے چه مرګ مے په اسلام او شی. اه

(۴) د ابن ماجه هغه حدیث چه په هغے کښې بحق السائلین وغیره الفاظ راغلی دی (تفصیل ئے عنقریب ذکر کیدے شی) که هم دے از روئ سند صحیح شی نو مراد د حق

[1] الحصن الحصین ص۱۳۱ (بحواله مؤطا امام مالک عن ابن عمر)

په دے کښې حق تفضلی دے. یعنی وعدهٔ دَ الله (صحح به ابن تیمیه رح)

## توسّل بحقِ الانبیاء والصالحین

دَ انبیاء او دَ صالحینؑ حق دربار الٰهی ته وسیله کرځول فقهاء حنفیو او نورو علماؤ عام طور سره مکروه او منع کنړلے دے. او دلیل یئے عام طور سره دا بیانیږی. چه په الله تعالیٰ بانډې دَ هیچا حق نشته دے.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح فرمائی چه کچرے مراد دَ حق نه حقیقی او واجبی حق وی. نو بیا خو دا خبره بالکل صحیح ده. چه دَ بندګانو دا سے قسم هیڅ حق په الله بانډې نشته دے. لیکن کچرے مراد دَ حق نه تفضلی حق وی. نو بیا دَ دے قسم دعا دَ کراهیت وجه دا نشته. چه په الله بانډې دَ چا حق نشته دے. ځکه چه دا قسم حق خو ثابت دے.

(۱) کتب ربکم علی نفسه الرحمة. الله تعالیٰ په خپل ځان رحمت او مهربانی کول لازم کړیدی.

(۲) وکان حقاً علینا نصرُ المومنین. په موږ بانډې دَ مؤمنانو امداد کول لازم دی.

(۳) (قال علیه السلام لمعاذ رض) حقهم علیه ان لایعذبهم. دَ بندګانو حق په الله تعالیٰ بانډې دا دے چه هغه دوئ له عذاب نه ورکوی. اه

بلکه په دے صورت بانډې دَ دے قسم توسل دَ عدم جواز او کراهیت وجه دا ده. چه دا قسم حق په اصل کښې هغه وعدهٔ ده. چه کوم الله تعالیٰ دَ صالحینؑ سره کړیده. او ظاهره ده چه دَ دے تعلق دَ سوال کونکی سره هیڅ نشته دے. بلکه دا توسل دے په یو اجنبی شئ سره. هان کچرے مراد یئے دا وی چه اے الله تا چه کوم وعدهٔ دَ صالحینؑ سره دَ هغوئ دَ عمل په بنا کړیده هغه عمل ما هم کړے دے. نو زه تا ته ستا دا وعدهٔ وسیله ګرځوم چه زما حاجت پوره کړے. نو صحیح دے.

او کچرے مراد دَ حق دَ صالحینؑ نه جاه وحرمت دَ دوئ وی. نو په دے کښې خو شک نشته دے چه دَ انبیاء کرام او خصوصاً دَ سید الانبیاء خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم ته دَ الله په دربار کښې ډیر زیات جاه وحرمت حاصل دے. او دَ دے وجه نه دَ الحب فی الله په بنا بانډې دَ دوئ سره محبت ساتل یو بهترین عمل دے. او دَ اجابت دعا دَ پاره بهترینه وسیله ده. او دا رنګے دَ دوئ تابعداری هم

بهترینه وسیله ده- لیکن کچرې یو سړے نه خپل محبت وسیله کرځوی- او نه خپله تابعداری وسیله کرځوی- بلکه صرف هغه جاه وحرمت دَ الله دربارته وسیله کرځوکوم چه الله تعالیٰ دے صالحینُ ته ورکړے دے- نو هر عقلمند په دا واپئ چه دا خو توسل دے په یو اجنبی شیٔ سره چه دَ هغه شیٔ ده سره څه تعلق نشته دے

بهرحال دَ حق نه مراد هر څه چه شی خو په دے سره توسل عقلاً هم یو غیر معقول خبره ده- او شرعاً هم ثابت نه دے- دَ دے وجه نه علماؤ دے ته صراحةً مکروهه ویلی دی-

(۱) ویکره ان یقول فی دعاءه بحق فلان۔[1] دعا کول په حق دَ فلان سره مکروه دی-

(۲) ویکره ان یقول الرجل فی دعاءه بحق نبیک[2] دعا کول په حق دَ نبی سره مکروه دی-

(۳) قال ابو حنیفةؒ وصاحباهؒ یکره ان یقول الرجل اسئلک بحق فلان او بحق انبیاءک او رسلک او بحق البیت الحرام او المشعر الحرام ونحو ذلک۔[3] امام ابو حنیفهؒ او دَ هغه دَ دوه شاګردانُ امام محمدؒ امام ابو یوسفؒ فرمائیلی دی چه دا ویل مکروه دی- چه اے الله ستا نه سوال کوم په حق دَ فلانی سړی یا بحق دَ پیغمبرانو یا بحق دَ بیت الله یا دَ مشعر حرام سره (دَ مزدلفه)

(۴) وفی الجامع الصغیر یکره ان یقول الرجل فی دعاءه بحق نبیک[4]۔ "جامع صغیر" (تصنیف دَ امام محمدؒ) کښی دی چه دُعا کښی "بحق نبیک" ویل مکروهه دی-

دَ دے قسم حوالے ډیرے پیش کیدے شی لیکن زما مقصد استیعاب نه دے-

### توسّل بالجاه والحرمة

په دُعا کښی دَ انبیاء کرامو او دَ صالحینُ حرمت او جاه و مرتبه وسیله کرځول دَ متاخرینُ په کتابونو کښی عام طور سره جائز ګڼړلے شویٔ- او صوفیاء حضرات هم په خپلو شیٔ کښی دَ دے ذکر کوی- او علماء دیوبند هم عام طور سره دَ دے قائله دی-

لیکن یاد لرئ چه دَ غیبی بلنے هیڅوک هم قائله نه دی- یعنی مړی او غائب ویل چه اے فلانیه زما دَ پاره دُعا اوکه- دا هیڅ قابلِ اعتماد عالم جائز نه ګڼی ځکه چه دا قسم بلنه مړوته او غائبو خلقو ته دَ دنیوی مصائبو دَ سفارش دَ پاره خو دا بعینه دَ عربو شرک وه- (تفصیل یٔے مخکښی شوے دے)

[1] هدایه ص ج [2] خلاصة الفتاوی نقلاً عن الجامع الصغیر ص ۳۲۶ ج ۴ [3] شرح فقه اکبر ملا قاری ص ۱۲۰ مصری [4] طریقه محمدیه ص ۱۵۴ ج ۲

علماء دیوبند او عام متاخرین چه کوم ته جائز وائی۔ هغه صرف دومره وئیل دی ((چه ای الله ذَ فلانی په حرمت او برکت په وجه زما دا کار او کړے))۔

په دے قسم توسل باندِ هم ذَ دا ټولو شرعیونه څه دلیل نشته دے۔ او نه دا قسم دُعا په خیر القرون کښی وه۔

لیکن دا چونکه ذَ شرکی عقیدے نه خالی ده۔ په دے وجه مونږ په دے کښی با وجود ذَ اختلاف رائ نه دومره تشدد نه کوو۔

او کړے حافظ صاحب صرف دا قسم توسل ذکر کړے وے نو ما به ورباندِ نوه کړښه هم نوه لیکلے۔ لیکن په دے افسوس دے چه دوئی خوهر قسم توسل جائز گڼړی۔

لیکن دا قسم دُعا خلاف سُنت او بدعت مکروه هر ضرور دے۔ ځکه چه په یو صحیح حدیث مرفوع سره هم دا دُعا ثابته نه ده۔ او په قرون ثلاثو (صحابه۔ تابعین۔ تبع تابعین) کښی ذَ دے قسم دُعا کانے په سند صحیح سره ثابتے نه دی۔ او څومره روایات چه په دے باره کښی ذکر کیږی۔ هغه سنداً ثابت نه دی۔ او اکثر دا قسم روایات په هغه کتابونو کښی نقل شوی دی۔ چه په څلورمه او پنځمه طبقه کښی دی۔ او په مقدمه کښی دا ذکر شوی دی۔ چه دا قسم کتابونه قابل استدلال نه دی۔

نو دا سخته بے انصافی ده۔ چه په قرآن کریم کښی او بخاری و مسلم غوندِ کتابونو کښی صحیح صحیح دعا گانے موجود دی۔ او بالکل کافی هم دی۔ او سره ذَ دے نه مونږ په تکلف سره ذَ طبقه رابعه او خامسه ذَ کتابونو نه ضعیف او موضوعی روایات جمع کوو او بیا ذَ هغے په روشنائ کښی ذَ دُعا چه ذَ عبادت یو اعلیٰ قسم دے نوے نوے طریقے راوباسو۔

## (تحقیق ذَ یو څو روایاتو)

زه مناسب گڼړم چه ذَ دے قسم یو څو روایات بطور نمونه نقل کړم۔ او ذَ اکابرو محدثینو نه په هغے باندِ تنقید هم نقل کړم۔

(۱) صدیق اکبر رض یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ذَ خپلے حافظے ذَ کمزورتیا شکایت اوکه۔ نو هغوی ورته مندرجه ذیل دُعا اوښودله۔

(اللهم انی اسئلک بمحمد صلعم نبیک و بابراهیم خلیلک و بموسیٰ نجیک و عیسیٰ روحک و

كلمتك وبتوراة موسىٰؑ وانجيل عيسىٰؑ وزبور داودؑ وفرقان محمدؐ وبكل وحي اوحيته وقضاء قضيته الحديث"

دا روايت دَ عبد الملك بن عنترة عن ابيه عن جده په اسناد سره رزين بن معاويه العبدري رح په خپل جامع کښې او ابن الاثير په جامع الاصول کښې نقل کړيدے. لیکن دے دواړو دَ دے روايت نسبت يو کتاب ته ندے کړے. البته ابن السني رح او ابي نعيم رح. ابو الشيخ الاصبهاني رح ابو موسىٰ المديني وغيره دَ طبقه رابعه محدثينؒ په خپلو کتابونو کښې دا روايت نقل کړيدے. ليکن دَ ټولو اسنادونو دارومدار په عبد الملك بن عنترة باندے دے. او دے په دے روايت کښې متفرد دے. متابعت ئے چا ندے کړے او دَ دغے عبد الملك حالت دا دے۔

قال الدارقطني رح هما ضعيفان و قال احمد رح عبد الملك ضعيف وقال يحي بن معين كذابٌ. وقال ابو حاتم رح متروكٌ ذاهب الحديث وقال ابن حبان رح يضع الحديث و وقال ابن تيمية رح وقال النسائي رح متروكٌ وقال البخاري رح منكر الحديث وقال ابن عدي رح له احاديث لايتابعه عليها احدٌ وقال الحاكم رح في المدخل عبد الملك بن عنترة الشيباني روى عن ابيه احاديث موضوعة و آخرجه ابو الفرج ابن الجوزي رح في كتاب الموضوعات[1]

دارقطني وائي چه دے او پلار ئے دواړه کمزوري دي۔ امام احمد بن حنبل رح فرمائي چه دے ضعيف راوي دے۔ يحي بن معين فرمائي چه دے غټ دروغژن سړے دے۔ ابو حاتم رض فرمائي چه علماؤ دَ ده روايت متروک کړے دے۔ ابن حبان رح وائي دے احاديث دَ ځان نه جوړوي ابن تيمية رح فرمائي چه امام نسائي دَ ده ته متروک وائي امام بخاري رح فرمائيلي دي چه دے منکر الحديث دے۔ ابن عدي رح وائي چه دے داسے حديثونه روايت کوي چه په هغے کښې دَ ده متابعت هيڅوک دَ کوي امام حاکم رح مدخل کښې وائي چه دے دَ خپل پلار نه دروغژن احاديث نقل کوي۔ او ابن جوزي دا مذکوره روايت په کتاب الموضوعات کښې نقل کړے دے۔ اھ

دا خو دے دَ دے روايت دَ سند حال۔ ليکن مضمون ئے هم دَ رسول الله صلعم او دَ صحابو رض دَ دعا دَ طريقے نه خلاف دے. حکم چه څو مرة دعا گانے چه په معتبرو کتابونو کښې په صحيح سند سره نقل شوي دي. په هغوي کښې دَ الله

[1] لسان الميزان لابن حجر رح صك ج ۴ : التوسل والوسيلة لابن تيمية رح ص ۸۲ ۱۲

الله تعالیٰ اسماء او صفات او عبادت وسیله ګرځولی شوی دی- بلکه بعینه د دغے حفظ القرآن د پاره په صحیح سند سره چه کومه دعا منقوله ده. په هغے کښ هم توسل بالاسماء والصفات ذکر شوی دے.

چنانچه د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه یو ځل حضرت علی رضی الله عنه رسول الله صلعم ته د خپلے حافظے د کمزورتیا شکایت اوکړو. نو هغوی ورته اوفرمایل چه د جمعے په شپه د چرګ بانګ په وخت کښ پاسه ځکه چه په دے وخت کښ دعا ښه قبلیږی او که په دے وخت کښ پاسیدے نشے نو نیمه شپه پاسه. او که دا هم درنه نشی کیدے نو بیا د شپے په اوله حصه کښ پاسه او څلور رکعته نفل اوکړه. په اول رکعت کښ د فاتحے نه پس سورة یٰسٓ اولوله- او په دویم کښ حٰمٓ الدخان په دریم کښ الٓمٓ تنزیل السجدة او په څلورم کښ سورة ملک اولوله. او چه سلام اوګرځے نو د الله حمد وثنا اووایه او په ما باندے درود اووایه او د ټولو مسلمانانو د پاره بخښنه اوغواړه او بیا دا دعا کوه-

اللهم ارحمني بترك المعاصي ابدا ما ابقيتني وارحمني ان اتكلف ما لا يعنيني وارزقني حسن النظر فيما يرضيك عني اللهم بديع السموات والارض ذا الجلال والاكرام والعزة التي لا ترام اسئلك يا الله يا رحمن بجلالك ونور وجهك ان تلزم قلبي حفظ كتابك كما علمتني وارزقني ان اتلوه على النحو الذي يرضيك عني الحديث[1]

اے الله په ما رحم اوکړے چه زه په خپل ژوند کښ ګناهونه پریږدم او په ما رحم اوکړے چه زه بے فائدے کارونو کښ مشغول نشم. او ما له په هغه څیزونو کښ د ښه سوچ او فکر کولو توفیق را کړے. چه ته پرے ما نه راضی کیږے. اے الله چه پیدا کونکے د آسمانونو او د زمکے یے مالک د عظمت او د احسان او د هغه عزت یے چه څوک یے طلب هم نشی کولے سوال کوم ستا نه اے الله اے مهربانه بادشاه په وسیلے د جلال او د نور ستا چه ته زما زړه د خپل کتاب په حفظ باندے لګ کړے لکه چه ما ته دے د دے تعلیم کړے دے. او توفیق را کړے چه زه دا کتاب په هغه طریقه لولم چه ته پرے ما نه رضا کیږے.

په آخر کښ ورته حضور صلعم اوفرمایل چه دا کار درے یا پنځه یا اووه جمعے اوکړه. نو دعا به دے قبوله شی انشاء الله.

رونړو! څنګه بهترینه دعا ده. نو مونږ له پکار دی چه دا دعا یاده کړو او د حافظے

[1] حصن حصین ص ۲۳۵ بحواله ترمذی ومستدرک عن ابن عباس رض ۱۲

دَ زیاتیدو دَ پارہ لولُو. پہ دے کښ توسل بالاسماء والصفات او توسل بالعبادۃ دوارہ شتہ دے. لیکن دَ توسل بالذوات الفاضلہ څہ نوم نشان هم نشتہ دے.

دوهم روایت:

(۲) عثمان بن حنیف رض تہ یو سړی راوړے چہ حضرت عثمان بن عفان رض سرہ څہ کار دے. لیکن هغہ ما تہ څہ توجہ نہ کوی. نو هغہ ورتہ اوفرمایل چہ اودس اوکہ او بیا پہ جماعت کښ دوہ رکعتہ نمونځ اوکہ او بیا دا دُعا اوکہ.

"اللهم انی اسئلک واتوجہ الیک بنبیک نبی الرحمۃ یا محمد انی اتوجہ بک الی ربک فیقضی لی حاجتی". چنانچہ دے سړی دا کار اوکہ. او بیا دَ حضرت عثمان بن عفان رض دربار تہ لاړ. نو هغوی دے دَ ځان سرہ پہ خواکښ کینولو او دَ هغہ حاجت ئے پورہ کړو. او بیا ئے ورتہ اووے. چہ بیا دَ پارہ کرځہ کار دوی. نو ما تہ راځہ. او دا سړے چہ واپس راغے او دَ حضرت عثمان بن حنیف ئے ډیرہ شکریہ اداکړہ. نو دوی ورتہ اووے چہ دا دُعا ما تا تہ دَ ځانہ ندہ خودلے بلکہ هم دغہ شان دُعا حضور صلعم یو ړوند سړی تہ خودلے وہ کوم چہ دَ رسول اللہ صلی اللہ علیہ سلم نہ دَ دعا طلب کړے وہ".

دا روایت پہ اصل کښ دَ حدیث اعمیٰ هغہ روایت دے. چہ څومرہ فریق مخالف پہ هغے استدلال کوی. او پہ دے حدیث بہ پورہ کلام عنقریب ذکر کړے شی.

لیکن پہ دے روایت کښ دَ حضرت عثمان بن حنیف رض نہ پس دَ وفاۃ دَ حضور صلعم نہ یو مصیبت زدہ او حاجتمند سړی تہ دَ توسل بالنبی صلی اللہ علیہ وسلم تعلیم کړے دے. حالانکہ دَ حضور صلی اللہ علیہ وسلم نہ چہ کوم مرفوع روایت پہ سند صحیح سرہ ترمذی وغیرہ کښ منقول دے پہ هغے کښ دَ توسل بدعاء النبی ذکر دے.

نو معلومیږی دا چہ دا دَ عثمان بن حنیف رض خپلہ رائی او اجتهاد دے. دوی بہ دا خیال کړے وی چہ کوم دعا چہ نبی ع اعمیٰ تہ خودلے وہ هغہ پس دَ وفاۃ دَ نبی ع نہ هم یو حاجتمند لوستے شی. نو دا روایت قول دَ صحابی شو. او چونکہ پہ دے باندے بغیر دَ دہ نہ بل صحابی عمل نہ دے کړے. بلکہ دَ حضرت عمر رض نہ پہ وخت دَ قحط کښ توسل بدعاء العباس رض ثابت دے. او دَ هیڅ صحابی نہ پہ سند صحیح سرہ دا ثابتہ نہ دہ. چہ هغہ پہ وخت دَ حاجت کښ دا دعا کړی وی. نو مونږ لرہ حجت تعامل دَ جمهور صحابہ دے. نہ دَ دے صحابی رض تفرد. او ډیر روایات او فتوے داسے دی. چہ دَ یو صحابی نہ

منقول دی۔ او عمل دَ جمهورو صحابو دَ هغے نه خلاف دے نو اُمت فقهاء په داسے معامله کښې دَ دے صحابي په تفرُّداتُ باندِ فتوٰے نه ورکوی۔ بلکه دَ جمهورو صحابو تقلید کوی۔

لیکن دا جواب علٰی سبیل التنزل دے۔ یعنی دا جواب هله دے کچرے دا روایت صحیح او منلے شی حالانکه دراصل دا روایت صحیح نه دے۔ بلکه منکر دے۔ دَ دے راویان دا دی « اصبغ بن الفرج عن عبد الله ابن وهب عن شعیب بن سعد المکی عن روح بن القاسم عن ابی جعفر عن ابی امامه بن حنیف عن عثمان بن حنیف رض »۔

دَ دے حدیث روایت ابن وهب دَ شبیب بن سعد نه کوی۔ او شبیب اگرکه ثقه دے او دَ امام بخاری په راویانو کښې شمار دے۔ لیکن علماء وائی چه ابن وهب اکثر دَ ده نه مُنکر حدیثونه نقل کوی۔ او وجه ئے دا بیانوی۔ چه دے به دَ تجارت دَپاره مصر ته تلو۔ نو کیدے شی چه ابن وهب (مصری) دَ ده نه په مصر کښې صرف دَ ده دَ حافظے نه حدیثونه لیکلی وی او دے به په دے کښې غلط شوے وی، اگرکه عمدًا دَ غلط بیانۍ الزام به په ده باندِ چا ندے لګولے۔ لکه ابن حجر العسقلانی فرمائی۔

| | |
|---|---|
| روی عنه احادیث مناکیر فکانه لما قدم مصر حدث من حفظه فغلط[1] | دَ ده (شبیب) نه ډیر منکر احادیث نقل شوی دی۔ نو شاید چه دے کله چه مصر ته راغلے وه۔ نو صرف دَ حافظے نه به ئے حدیثونه بیان کړی وی۔ |
| وحدث عنه ابن وهب باحادیث مناکیر ولعل شبیبًا لما قدم مصر فی تجارته کتب عنه ابن وهب من حفظه فغلط ووهم وارجوا ان لا یتعمد الکذب انتهی[2] | دَ ده نه ابن وهب ډیر منکر روایات نقل کړی دی۔ نو شاید چه دے کله چه مصر ته راغلے وه۔ نو صرف دَ ده دَ حافظے نه به ابن وهب حدیثونه لیکلی وی۔ نو دے به په کښې غلط شوے وی او ځما دَ ده متعلق امید هم دغه دے چه ده به قصدًا دروغ بیانی نه کوله۔ اه |
| (۳) اذا کانت لکم الی الله حاجة فاسئلوا الله بجاهی فان جاهی عند الله عظیم۔ | کله چه ستاسو الله تعالٰی ته څه حاجت وی نو ځما دَ جاه (مرتبے) په وسیلے سره ئے غواړئ ځکه ځما دَ الله په دربار کښې لویه مرتبه ده۔ اه |

دے کښې خو هیڅ شک نشته دے چه دَ آقائ نامدار سید الانبیاء محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم

[1] مقدمه فتح الباری ص۴۰۸ [2] تهذیب التهذیب ص۳۰۷ ج۴ وهکذا فی التوسل والوسیلة ص۹۹

جاه او مرتبه دَ الله په دربار کښ ډیره لویه ده. او دَ دے مرتبے تقاضے دا ده چه مونږ دَ ده تابعداری اوکو. او دوی سره محبّت اوساتو. او هم دَ دغے تابعدارئ او محبت رسول په وجه به انشاء الله حضور صلعم ځمونږ شفاعت کوی. او الله تعالیٰ به دَ دے په وجه مونږ له نجات راکوی. او په دنیوی مصیبتونوکښ هم دا تابعداری او محبّت وسیله گرځیدے شی.

لیکن نفس جاه دَ هغوئ وسیله گرځول نه دَ قرآن کریم نه ثابت دے او نه دَ صحیح حدیث نه او نه دا توسل په قرون ثلاثو کښ چا کړے دے. او دا مذکوره روایت دَ پښتے طبقے دَ هغه روایاتو نه یو روایت دے. چه صرف دَ واعظینو او متکلفینو په ژبو باندِ جاری دے. دَ حدیث معتمد و کتابونو کښ دَ ده څه وجود نشته دے. او دَ هغه روایاتو نه یو روایت دے چه دَ کوم متعلق امام احمد بن حنبل رح فرمائی.

للناس احادیث یتحدثون بها علی ابواب دُورهم ما سمعنا بشئ منها یٰله

دیر خلق په خپلو دروازو باندِ (دربارونو) حدیثونه بیانوی چه مونږ هغه بالکل نه دی اوریدلی.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح دَ دے مذکوره روایت متعلق فرمائی.

مایرویه بعض العامة اذا سئلتم الله فاسئلوا بجاهی الخ هو کذب موضوع یٰله

دَ فاسئلوا بجاهی هغه حدیث چه زبان زد عوام دے. هغه دروغ او موضوعی حدیث دے.

فهذا الحدیث لم یروه احدٌ من اهل العلم ولا هو فی شئ من کتب الحدیث یٰله

دا حدیث نه په اهل علمو کښ چا نقل کړے دے او نه په یو کتاب دَ حدیث کښ دَ ده ذکر شته دے. اه

(۳) یو ځل ځا امام مالک رح او دَ امیر المؤمنین ابوجعفر رح په مینځ کښ په مسجد نبوی کښ څه مباحثه شروع شوه. نو امام مالک رح امیر المؤمنین ته او فرمایل چه په دے جماعت کښ چغے مه وهه ځکه چه الله تعالیٰ فرمائی (لا ترفعوا اصواتکم فوق صوت النبی) او حرمت و عزت کول دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم پس دَ وفات نه پشان

له کتاب الاستغاثه ص۱۰۵ ؛ ۲ه ایضاً ص۱۳ ؛ ۳ه مجموعة الرسائل ص۲۳ ج۱ ؛

دَ حرمت دے په حالت دَ ژوند کښ. نو ابوجعفرؒ لګ سوړ شه. او وې وئیل چه اے ابوعبدالله زه دَ دعا په وخت کښ قبلے ته مخ کړم که رسول الله صلی الله علیه وسلم ته؟ نو امام مالکؒ او فرمایل چه ته دَ حضور صلعم نه مخ ولے اړوے حالانکه دا ستا او ستا دَ نیکه وسیله ده په ورځ دَ قیامت کښ. نو حضور ته مخ کړه او دَده په وسیله دعا او غواړه. نو خدای به دِ دعا قبوله کړی. الله تعٰ فرمائی. ولو انهم اذ ظلموا انفسهم جاءوک فاستغفروا الله الاٰیة

دا روایت قاضی عیاضؒ دَ "شفاء" په باب دَ "حرمة النبی بعد موته وتوقیره وتعظیمه لازم کما کان حال حیاته" کښ نقل کړیدے. او راویان ئے دا دی.

"ابوالعباسؒ احمد بن عمر ابن دلهات. ابوالحسنؒ علی بن فهر. ابوبکر محمد بن احمد الفرج ابوالحسنؒ عبدالله بن المنتاب. یعقوب بن اسحٰق بن ابی اسرائیل. محمد بن حمید الرازی قال ابوجعفر امیرالمؤمنین الخ"

په دے روایت باندِ یوه جرح خو انقطاع ده. ځکه چه دَ ابن حمید الرازی ملاقات دَ امام مالکؒ سره ثابت نه دے. دے په ۲۴۹ھ کښ وفات شویدی. او امام مالکؒ په ۱۷۹ھ کښ او ابوجعفرؒ په ۱۵۸ھ کښ وفات شویدے. او ابن حمیدؒ دَ طلب علم دَ پاره دَ ځپل پلار سره دَ ځوانئ په حالت کښ سفر شروع کړے ده. نو دا ډیره بعیده خبره ده چه ده باوجود دَ دومره فاصلے نه دَ امام مالکؒ او دَ ابوجعفرؒ دا مناظره اوریدلے وی.

او دویمه جرح په دے روایت دا ده چه دا ابن حمید رازی ثقه هم نه دے. بلکه دے ضعیف دے.

| | |
|---|---|
| وهو مع هذا ضعیفٌ عند اکثر اهل الحدیث کذبه ابوزرعة وابن وارةؒ | دے دَ اکثرو علماؤ دَ حدیث په نزد ضعیف دے. ابوزرعہؒ او ابن وارہؒ فرمائی چه دے دروغژن دے |
| وقال صالح بن محمد الاسدیؒ ما رأیتُ احدًا اجرأ علی الله منه واحذق بالکذب | صالح بن محمدؒ فرمائی په خدای پاک باندِ دروغ جوړولو کښ دَ ده نه زیات زړور ما نه دے لیدلے. او دے په دروغ جوړولو کښ ډیر ماهر دے. |
| وقال یعقوب بن شیبة کثیر المناکیر | ابن شیبهؒ وائی چه منکر حدیثونه ډیر نقل کوی. |
| وقال النسائی لیس بثقة[1] | امام نسائیؒ وائی چه دے ثقه نه دے. |

دَ امام مالک نه چه دَ شام راویان لکه ولید بن مسلم او مروان بن محمد الطاهریؒ

[1] التوسل والوسیلہ ص ۶۹ ۱۲

روایت اوکی نو مالکی علماء ده تبخه اعتبار نه ورکوی. بلکه دوی عام طور سره د مدینې او د مصر د راویانو په روایاتو اعتماد کوی. نو د خراسان د یو ضعیف او غیر ثقه راوی په دے منقطع روایت به څرنګے اعتماد اوکړے شی. هم دا وجه ده چه دا روایت د مالکی مذهب مشهورو علماؤ په خپلو تصنیفاتو کښ نه دے ذکر کړے.

دریم جرح دا ده چه د امام مالک مشهور و معروف مذهب دا دے چه دعا کوونکے به په وخت د دُعا کښ مخ روضے مبارکے ته نه کوی بلکه قبلے ته به راګرځی. او په دے روایت کښ په دعه وخت هم روضے ته د مخ کول ذکر دی. نو معلومه شوله چه دا د دوی نه ثابت نه دے.

قاضی عیاض په "مبسوط" کښ د امام مالک نه طریقه د زیارت دا سے نقل کوی لا اری ان یقف عند قبر النبی صلی الله علیه وسلم یدعوا ولکن یسلم ویمضی. چه زه د دعا په وخت کښ د روضے مبارکے په خوا کښ اودریدل جائز نه ګنړم. بلکه سلام دې کوی بیا دې ځی اھ

او جواب علی طریق المسالمه دا دے چه که بالفرض دا روایت صحیح هم شی نو په دے کښ د توسل بجاه النبی صلی الله علیه وسلم ذکر نشته دے. بلکه په ورځ د قیامت کښ د حضور صلی الله علیه وسلم د وسیله کیدو ذکر دے. او شک نشته چه دوی به په ورځ د قیامت کښ شفاعت کبری باذن الله کوی. او آیت د فاستغفر لهم الرسول د دوی صرف د حضور صلعم د عظمت د بیان د پاره ذکر کړے دے. چه د دوی دومره لوئی شان دے چه په حالت د حیات کښ چه دوی د چا د پاره بخښنه اوغواړی، نو الله تعالی ورته بخښنه کوی.

## پنځم روایت

(۵) د ابو سعید خدری نه روایت دے چه څوک د کور نه په اراده د مانځه سره اووځی او مندرجه ذیل دعا اووائی نو الله تعالی به ورته په خپل خاص رحمت سره متوجه شی او اویا زره ملائکے د ده د پاره بخښنه غواړی.

اللهم انی اسئلک بحق السائلین علیک واسئلک بحق ممشای هذا فانی لم اخرج اشرا ولا بطرا ولا ریاء ولا سمعة وخرجت اتقاء سخطک وابتغاء مرضاتک

اے الله زه ستا نه په وسیلے د حق د سوال کوونکو او په وسیلے د حق د دغه تلو خپل سره ما نځه ته سوال کوم. ځکه چه د ریا کارے او د نوم د پاره نه یم وتلے، بلکه ستا د عذاب نه د یرے په وجه او ستا د رضا د پاره وتلے یم

فاسئلک ان تعیذنی من النار و ان تغفرلی ذنوبی انه لایغفر الذنوب الا انت[1]

نو اے اللہ زہ ستانہ سوال کوم چہ ما د جهنم د اور نہ او ساتے او زما گناهونہ او بخښے بے شک ستانہ بغیر څوک گناهونہ نشی بخلے. ام

**مضمون روایت**
قطع نظر د دے چہ دا روایت از روئ سند صحیح دے او کہ ضعیف دے جحت د فریق مخالف نشی کر ځیدے ځکہ چہ پد دے کښ توسل بالوعد او توسل بالعمل الصالح ذکر دے.

ظاهره ده چہ د "حق" نہ مراد وجوب حقیقی خوند دے بلکہ حق تفضلی دے او هم د دغے حق تفضلی دویم تعبیر وعدۂ الٰهی ده. او معنیٰ دا ده چہ اے اللہ تا چہ کومہ وعده د سوال کونکو سره کریدہ چہ زه بہ د دوئ سوال قبلوم. زه دا وعده ستا دربارته وسیلہ کرځوم چہ تہ ځما گناهونہ معاف کرے. او ما د اور نہ او ساتے. او بیا دا دُعا کونکے خپل عمل یعنی خالص د رضائ الٰهی د پاره د کور نہ تګ د پاره وتل وسیلہ کرځوی. پہ دے روایت کښ خو د توسل بالذات او د توسل بالحرمة والجاه څہ شائبہ قدرے هم نشتہ دے. نو زه نہ پوهیږم چہ دوئ دا روایت څرنګ پہ خپلو دلائلو کښ شماری.

**سَنَدِ روایت**
دغہ جواب خو بنا بر تسلیم صحت حدیث دے. ورنہ دراصل دا حدیث از روئ سند ضعیف دے. راویان ئے مندرجہ ذیل دی.

(۱) محمد بن سعید بن یزید بن ابراهیم التُستُری پہ دے باند ځما پہ علم کښ نہ چا جرح نده راغلے.

(۲) ابو الجهم فضیل بن الموفق رح. امام ابو حاتم رح فرمائی چہ دے صالح دے خو پہ فن حدیث کمزورے وه.[2]

(۳) فضیل بن مرزوق الرواسی الکوفی. امام نسائی رح فرمائی چہ دے ضعیف دے. امام ابو حاتم رح وائی چہ صدوق (رشتنے) دے خو ډیره غلطی کوی. امام حاکم رح فرمائی چہ د صحیح حدیث شرطونہ پہ ده نہ دی صادق. او امام مسلم رح د ده نہ چہ روایت کریدے نو دا د امام مسلم عیونو کښ شمارلے شویدے

[1] ابن ماجہ ص۵۶ و مسند احمد ج۳ [2] تهذیب التهذیب ص۲۹۹ ج۸ ۱۲

ابن حبان رح په کتاب الضعفاء کښې وائی چه دے د ثقه راویانو نه په روایت کولو کښې اکثر خطا کیږی. دے د عطیه العوفی نه موضوعات نقل کوی.
امام احمد بن حنبل رح وائی چه ضعیف نه علاوه د بل چانه دیر کم روایت کوی.
امام عجلی رح فرمائی چه په ده کښې تشیّع (شیعه توب) وه.[1]
(۴) عطیه ابن سعد بن جنادة العوفی الجدلی الکوفی رح مسلم بن الحجاج د امام احمد بن حنبل رح نه نقل کوی. چه دے ضعیف دے. ده به د کلبی رح نه هم تفسیری روایات زده کړل او نسبت به ئے ابو سعید خدری رض ته کوو.
امام ابو زرعه رح وائی چه دے ډیر نرم دے.
امام نسائی وائی دے ضعیف دے. دے د کوفے په شیعه گانو کښې حسابید و. او په سـ۱۱۱ه یا سـ۱۲۷ه کښې وفات شوید ے.
امام ابوبکر البزاز رح به دے په شیعه گانو کښې حسابوو.[2]
شیخ الاسلام ابن تیمیه رح فرمائی. دا روایت د عطیه عن ابی سعید رض نه نقل شوید ے او عطیه په اجماع د اهل علم سره ضعیف دے. او د دے روایت یو بل سند هم شته دے لیکن هغه هم ضعیف دے.[3]
رونړو! د فریق مخالف د "توسل بالذات والحرمة" د اثبات د پاره تمام سرے د دے قسم نه ده. او دعوی دا کوی چه دا بعینه د اهل سنت والجماعة مسلک دے.

## په امام ابن تیمیه رح باندې د امام سبکی رح تنقید

شیخ الاسلام ابن تیمیه رح د توسل بالحرمة والجاه قائل نه وه. او دلائل ئے واضح وو. چه دُعا عبادت دے. او عبادات و کښې نقل شرط دے. او د دے قسم دعا گانے په سند ثابت سره نه دی نقل شوی. صرف د بعض اکابرو ذاتی آراء او رویّے منقول دی. او چه کوم روایات د صحابو نه په دے باره کښې منقول دی. هغه یا خو په سند صحیح سره ثابت نه دی. یا د هغوی نه توسل بالحرمة والذات نه معلومیږی. نو مونږ ته هم ضرورت دے چه د صحیحا و د ثابت شوه دُعاگانو باوجود د دے قسم دُعاگانے کول شروع کړو.

[1] تهذیب التهذیب ص۳۰ ج۸ [2] تهذیب ص۲۲۷ ج۷ [3] التوسل والوسیله ص۱۱۱ وهکذا مجموعة الرسائل ص۱۹ ج۱ : ۱۲

نو امام سبکیؒ وړ باندې تنقید کړے وو. او فرمائیلی یٔ چه دا توسل په اسلاف کښې بالاجماع جائز او متداول وو. صرف ابن تیمیهؒ په خپله زمانه کښې دا نه انکار او کړو.

## دَ امام ابن تیمیهؒ دَ طرفه دَ علامه آلوسی حنفیؒ جواب

نو علامه آلوسی حنفیؒ دَ ابن تیمیهؒ دَ طرفه امام سبکیؒ ته جواب ورکوی. چه آغو هغه کوم اسلاف دی. چه په هغوی کښې دا دُعا اَ جُروه. په قرونِ ثلاثه کښې خو دَ دے توسل څه ثبوت نشته دے. دَ علامه آلوسی عبارت دا دے.

وقد شنع التاج السبکیؒ کما هو عادته علی المجد فقال ویحسن التوسل و الاستغاثة بالنبی صلی الله علیه وسلم الی ربه ولم ینکر ذلک احدٌ من السلف والخلف حتی جاء ابن تیمیهؒ فانکر ذلک وعدل عن الصراط المستقیم و ابتدع مالم یقله عالمٌ وصار بین الانام مثلة (انتهی کلام السبکیؒ) وانت تعلم ان الادعیة الماثورة عن اهل بیت الطاهرین وغیرهم من الائمة لیس فیها التوسل بالذات المکرمة علی الله تعـ ولو فرضنا ما ظاهره ذلک فمؤول بتقدیر المضاف کما سمعت او نحو ذلک کما تسمع ان شاء الله ومن ادعی النص فعلیه البیان[۱]

امام سبکیؒ دَ خپل عادت مطابق په مجد ابن تیمیهؒ باندې تردید کړیدے او فرمائیلی یٔ دی. چه دَ الله په دربار کښې توسل او استغاثه بالنبیؐ بهتر دے او غوره خبره ده. او دے په سلف او خلف کښې هیچا انکار نه دے کړے. حتی چه ابن تیمیهؒ راغے او دَ دے نه یٔ انکار او کړه. او دَ صحیح لارے نه یٔ تجاوز او کړه. او دا سے خبره یٔ را او ویسته چه په هغے باندې هیڅ عالِم قول نه دے کړے. او په دے وجه دے دَ خلق په مینځ کښې یو لګے پاتے شه. (انتهی کلام)

(علامه دا یی) ته ښه پوهیږے چه دَ اهلِ بیتو نه او دَ نورو اماتانو نه چه کومے دُعا ګانے منقول دی. په هغوی کښې ذواتِ مکرمه وسیله نه دی ګرځولے شوی. او که بالفرض دا سے څه روایت وی هم نو په هغے کښې تاویل شوے دے یا په مضافِ محذوف منلو سره (په حدیثِ اعمیٰ کښې دَ بالنبیؐ نه مراد بدعاء النبیؐ دے.) لکه چه تا او ریدلی یا په بل طریقه سره لکه چه دا به ورسے ان شاء الله. او څوک چه دَ نصِ صحیح

ھغہ کوی لوی بیان ادا کړه

الله تعالے دِ په علامه آلوسیؒ باندې خپل رحمتونه را اوروی. ده باوجود دَ حنفی والی نه دَ خپل مسلک یو بهترین عالِم امام التاج السبکیؒ ته عالمانه او منصفانه جواب ورکړه. او حقیقت خو دا دے چه دَ حق پرستو علماؤ دَ ژبے نه الله تعـ دَ حق آواز او باسی او

[۱] روح المعانی "سورة مائده تحت آیة الوسیلة"، ص۱۱۲ ج۱

په دے کښې دے د خپل اود پردی خیال نه ساتی۔

ابن تیمیہ رحمۃ اللہ علیہ د یو حقه خبرے په خپلو کتابونو کښې ذکر کړے وه۔ اګر که د ده په زمانه کښې هم او د ده نه روستو هم د علماؤ عامه رویه د دے نه خلاف وه او هغوی د اقسام دعا گانے کولے او د امام سبکی تنقید هم صرف د دے عام رویے نه د مغلوبیت په وجه وو نو علامه آلوسی رحمۃ اللہ علیہ ته الله تعالی توفیق ورکړو۔ چه دوی د ابن تیمیہ رحمۃ اللہ علیہ د حقه خبرے تائید اوکړو او د دے پرواه یے اونه ساتله چه ځما په زمانه کښې عام طور سره علماء د اتوسل بالحرمة (استمداد او نداء غیبی نداکا مراد) جائز گنړی۔

او هم د غه طریقه د حق پرستو جوان مردانو دی (لا یخافون لومة لائم)

؎ آئینِ جوان مردان حق گوئی و بے باکی — اللہ کے شیروں کو آتی نہیں روباہی۔ اقبال رحمۃ اللہ علیہ

؎

کہو اگرے گا حفاظت میری خدا میرا — رہوں جو حق پہ مخالف کریں گے کیا میرا

خدا کے در سے اگر میں نہیں ہوں بیگانہ — تو ذرہ ذرہ عالم ہے آشنا میرا۔ اکبر الٰہ آبادی رحمۃ اللہ علیہ

# د حافظ صاحب په دلائلو باندې تبصره

د وسیلے د مفهوم او د هغه د اقسامو متعلق ما په تفصیل سره خپل نقطۂ نظر څکه واضح کړه چه اکثر خلکو په ملک کښې هم د غه وسیله مابه النزاع مسئله ده او الزام دا ورکوی چه موږ وسیله نه منو۔ بهرحال د دے تفصیل نه پس به ان شاء الله خلکو متعلق غلط فهمی لرو منصف مزاج انسان نشی خوړولے او حق پرست او د حق طلبګار به په دے مسئله کښې په غلط فهمی کښې نه مبتلے کیږی۔ (فالحمد لله الذی وفقنی لهذا)

اوس زه د حافظ صاحب په دلائلو تبصره کومه او د دے جائزه آخلم چه په دیکښې څومره طاقت دے۔

(۱) اول دلیل د حافظ صاحب د مطلق توسل د پاره آیت د وسیلے دے۔ د دے آیت مکمل او مدلل تفسیر مخکښې ذکر شوے دے۔ د هغے نه ثابته ده چه په دے آیت کښې د مطلق توسل ذکر نشته دے بلکه د توسل بالایمان والعمل الصالح ذکر دے او دا مابه النزاع مسئله نه ده۔

(۲) دویم دلیل ئے واستغفر لهم الرسول دے۔ حالانکه دَ دے نه مراد توسل بدعاء النبی دے۔ تفصیل ئے ذکر شوی دے۔

(۳) دریم دلیل ئے حدیث دَ اعمیٰ دے۔ دَ دے جواب داد ے چه په دے حدیث کښی صاف طور سره دَ توسل بالدعاء ذکر دے۔ نو دَ دے نه مطلق (توسل) دَ حافظ صاحب اطلاق توسل بالذات بالحق او استمداد و نداء غیبی کول ئے تر شامل دے۔ فیا اسفیٰ نه معلومیږی۔ چونکه دَ حدیث اعمیٰ مکمل تفصیل مخکښی ذکر شوے نه دے۔ دَ دے وجه نه زه مناسب گنړم چه دَ دے روایت مکمل تفصیل قارئین ته پیش کړم

## حدیث اعمیٰ

عن عثمان بن حنیف قال ان رجلاً ضریر البصر اتی النبی صلی الله علیه وسلم فقال ادع الله ان یعافینی فقال ان شئت دعوت وان شئت صبرت فهو خیر لک قال فادعه قال فامره ان یتوضأ فیحسن الوضوء ویدعو بهذا الدعاء۔ "اللهم انی اسئلک واتوجه الیک بنبیک محمد صلی الله علیه وسلم نبی الرحمة یا محمد انی توجهت بک الی ربی لیقضی لی فی حاجتی هذه اللهم فشفعه فی[۱]

یو ړوند سړے حضور ته راغے او ورته ئے او وئیل چه دُعا اوکه چه الله ما دَ دے مصیبت نه خلاص کړی۔ نو نبی علیه السلام او فرمایل چه که خوښه دِ وی نو دعا به اوکړم او که خوښه دِ وی نو صبر اوکړه دا به درله ښه وی هغه او وے چه دُعا او کړه۔ نو حضور صلعم ورته حکم اوکړ چه اودس اوکړ او دا دُعا اوکړ۔ اے الله زه ستا نه سوال کوم او متوجه کیږم تا ته په وسیله دَ محمد سره چه نبی دَ رحمت دے۔ اے محمد صلی الله علیه وسلم زه ستا په وسیلے سره رب ته متوجه کیږم چه زما دا حاجت پوره کړی۔ اے الله دَ پیغمبر صلی الله علیه وسلم دُعا زما په حق کښی قبوله کړی۔ اه

## سند حدیث

دا روایت بخاری او مسلم په خپلو کتابونو کښی نه دے ذکر کړے او امام ترمذی نسائی ابن ماجه بیهقی ابن السنی حاکم طبرانی امام احمد رحمهم الله په خپلو تصنیفاتو کښی په مختلفو الفاظو او اسانیدو سره ذکر کړیدے۔ لیکن دَ دے ټولو اسانیدو مدار صرف په یو راوی دے۔ چه هغه ابو جعفر دے۔ یعنی دَ دے حدیث هر یو اسناد ابو جعفر ته رسید لے دے۔ او دا سے سند نشته دے چه په هغے کښی دَ ابو جعفر په ځای بل راوی راغلے وی۔

[۱] مشکوٰة ص۲۱۶ ج۱۔ ترمذی ج۲ ص۲۷ ابواب الدعوات۔ وغیره ۱۲

نو دا حدیث غریب خو بالاتفاق دے۔ مناسبه دا چه زه یو څو سندونه بطور مثال ذکر کړم۔ دَ امام ترمذی سند دا دے۔

(۱) محمود بن غیلان رح۔ عثمان بن عمر رح۔ شعبه رح۔ ابُو جعفر المدنی۔ عمارة بن خزیمه بن ثابت رح۔ عثمان بن حنیف رض۔ دَ ابن ماجه سند په دا دے۔

(۲) احمد بن منصور بن سیار۔ عثمان بن عمر۔ شعبه رح۔ ابو جعفر۔ عمارة بن خزیمه بن ثابت۔ عثمان بن حنیف رح۔

دَ امام احمد بن حنبل رح سند دا دے۔

(۳) رَوح بن عباده۔ شعبه رح۔ ابُو جعفر المدینی۔ عمارة بن خزیمه بن ثابت عثمان بن حنیف رض۔ او سند دَ بیهقی دا دے۔

(۴) شبیب بن سعید الحبطی رح۔ رَوح بن القاسم رح۔ ابُو جعفر المدینی۔ ابوامامه سهل بن حنیف۔ عثمان بن حنیف رض۔ سند دَ ابن السنی دا دے۔

(۵) ابو عروبه۔ عباس بن فرح الریاشی او حسین بن یحیٰ الثوری رح۔ احمد بن شبیب شبیب بن سعید رح۔ روح بن القاسم رح ابُو جعفر المدینی (وهو الخطمی عنده) ابُو امامه بن سهل بن حنیف رح۔ عثمان بن حنیف رض۔ سند دَ حاکم دا دے۔

(۶) عثمان بن عمر۔ شعبه۔ ابُو جعفر المدنی۔ عمارة بن خزیمه ابن ثابت۔ عثمان بن حنیف رض۔ دویم سند دَ حاکم رح دا دے۔

(۷) شبیب بن سعید او عون بن عمارة۔ روح بن القاسم۔ ابو جعفر الخطمی ابو امامة بن سهل بن حنیف رح۔ عثمان بن حنیف رض۔ سند دَ طبرانی دا دے۔

(۸) ابن وهب۔ شبیب بن سعید رح۔ روح بن القاسم۔ ابُو جعفر الخطمی ابوامامه بن سهیل بن حنیف۔ عثمان بن حنیف رض۔

طبرانی رح په دے سند سره دَ عثمان بن حنیف رض پس دَ وفات دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا دعا یو سړی ته دَ خودلو ذکر هم کړید ہے۔ لیکن په دے زیادت سره صرف روح بن القاسم دا روایت نقل کړید ہے۔ دَ ابو جعفر په دے روایت کښ باقی شاګردان یعنی امام شعبه رح او امام حماد بن سلمه رح دا زیادت نه دے نقل کړے۔ او روح بن القاسم په درجه کښ شعبه او حماد ته نشی رسیدے۔ او دا زیادت

ذ دې حدیث عام مخرجین مثلاً ترمذی ـ نسائی ـ ابن ماجه ـ احمد بن حنبل رح وغیرهم په خپلو کتابونو کښې ندې نقل کړې ـ بلکه صرف بیهقی او طبرانی ذ دې تخریج کړیدې ـ فافهم ـ

ذ ابن ابی خیثمه رح سند دا دې ـ

(۹) [1] مسلم بن ابراهیم ـ [2] حماد بن سلمه رح ـ [3] ابو جعفر الخطمی ـ [4] عماره بن خزیمه بن ثابت [5] عثمان بن حنیف رض ـ

ذ دې مختلفو سندونو بنیاد صرف ابو جعفر دې ـ او ابو جعفر نو اسم کنیه ده پدې سره ذ راوی وضاحت نشی کیدې خصوصاً دا ابو جعفر ذ ډیرو کسانو اسم کنیه ده ـ لیکن سوی ذ امام ترمذی نه نو ل محدثینو ویلی دی چه ذ ده نه مراد ابو جعفر المدنی الخطمی دې ـ او ابن ابی خیثمه رح او امام ابن تیمیه رح وغیرهما فرمائی چه ذ ده نوم "عمیر بن یزید" دې ـ بلکه ذ مسند احمد په یو روایت کښې ذ دې نوم تصریح هم شوې ده ـ نو دا خبره واضحه شوه ـ چه دا "ابو جعفر المدنی الخطمی عمیر بن یزید" دې او امام ترمذی چه ده ته غیر الخطمی وائی نو دا ذ ده تساهل دې ـ او ابو جعفر الخطمی اگرکه ذ شیخین (بخاری او مسلم) ذ شرطونو سره برابر نه دې ـ لیکن ترمذی او ابو داؤد ـ ابن ماجه ـ نسائی عام طور سره ذ ده نه روایت کوی ـ

نو دا روایت از روئی سند اگرکه غریب خو دې ـ لیکن ضعیف نه دې ـ لیکن که چرې ذ امام ترمذی دا قول صحیح وی چه دې غیر خطمی دې ـ نو بیا حدیث ضعیف دې ـ (اگرکه ترمذی رح ورته حسن صحیح ویلی دی ـ) ځکه چه غیر خطمی غیر ثقه دې ـ

واما غیر الخطمی ابو جعفر الرازی     غیرخطمی ابوجعفر قوی او ثقه راوی نه دې ـ
فهو لیس بالقوی [1] ـ

مضمون حدیث | په خالی الذهن او منصف مزاج انسان چه ذ دې حدیث په الفاظو او ذ ده په پس منظر غور او کړی ـ نو هغه ته

به پتیان ذ تبر دا خبره واضحه شی ـ چه په ده کښې ذ "توسل بالذات والحرمة" هم شائبه هم نشته دې ـ بلکه په دې کښې خو ذ "استشفاع عن النبی ؐ" یعنی ذ نبی ؐ نه

[1] نسائی ص ۱۸۲ و هکذا فی التقریب ج ۲ ص ۱۲

د هغوی د ژوندِ په حالت کښ طلب د دعا دے. او دا دُعا د الله ته په دربار کښ په طور د وسیلے پیش کول دی.

یو مصیبت زده ړوند دربار نبوی ته حاضر یږی. او وائی چه اُدعُ الله اَن یَّعافِیَنی یا رسول الله د الله په دربار کښ ما د پاره دُعا اوکه. چه د دے مصیبت نه ما خلاص کړی. او نبیؐ ورته د صبر تلقین کوی. او چه کله مصیبت زده انسان د صبر کولو نه د خپلے کمزورئ اظهار کوی او بیا وائی چه یا رسول الله ما د پاره دُعا اوکړه نو نبیؐ ورته وائی چه لاړ شه اودس اوکه (د ترمذی نه علاوه په اکثرو روایاتو کښ دا هم ذکر دی چه بیا دوه رکعته مونځ اوکه) او بیا د الله په دربار کښ دُعا کوه چه اے الله زه ستا د پیغمبر دُعا ستا دربار ته وسیله ګرځوم ترڅو د دوئ دا دُعا ما په حق کښ قبوله کړے.

دا قول د دے خبرے واضح قرائن او شواهد ندی څه؟ چه مراد د بینائی نه بدعاء بینائی دے. او دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په معجزات کښ یوه معجزه وه چه د دوئ په دعاء سره فوراً یو ړوند جوړ شه. د دے وجه نه اکثرو محدثینو سوئ د امام ترمذی او ابن ماجه نه دا روایت په باب د معجزاتو او دلائل النبوة کښ نقل کړیدے. دا څه مستقله دُعا نه ده. چه پس د وفات د رسولؐ نه خلق د خپل حاجت د پاره د دے نه کار اخلی. هم دا وجه ده چه په قرونِ ثلاثه کښ هیچا په خپلو حاجتونو کښ دا دُعا نه ده کړے. د حاجت برآرئ د پاره په احادیثو کښ مستقلے دعاګانے منقولے دی.

علماؤ او شارحینؒ د دے حدیث هم دغه مطلب بیان کړیدے، چنانچه میر سید سندیؒ فرمائی.

| | |
|---|---|
| سئل الله اولاً بطريق الخطاب ثم توسل بالنبی صلی الله علیه وسلم علی طریق الخطاب ثانیاً ثم کرالی خطاب الله طالباً ان یقبل شفاعة النبی صلی الله علیه وسلم فی حقه [1] | دے ړوند صحابیؓ اول د الله نه په صیغے د خطاب سره سوال اوکه. او بیائے توسل اوکه په نبیؐ سره په صیغے د خطاب سره. او بیائے د الله نه په صیغے د خطاب سره په خپل حق کښ د رسول الله د "شفاعت" د قبولو طلب اوکه. |

[1] حاشیه مشکوٰة ص۲۲۶ ج۱ ؛ ۱۲

(۲) علامه طیبی رح فرمائی۔

لکن فی جعله شفیعاً و وسیلةً فی استجابة الدعاء انه صلی الله علیه وسلم شریک فیه[1]

دے رونډ صحابی چه د دعا د قبلیدو دپاره حضور صلعم شفیع او وسیله اوګرځو نو معلومه شوه چه نبی ع ورسره په دے دعا کښې شریک وه۔

(۳) مشهور حنفی علامه آلوسی رح چه کوم جواب امام سبکی رح ته د امام ابن تیمیه د طرف نه ورکړیدے۔ په هغے کښې هم د ابن تیمیه رح د حدیث دا جواب چه د دے نه مراد بدعاء النبی ع دے۔ تسلیم شویدے۔ پوره عبارت مخکښې ذکر شویدے

حافظ صاحب د دے حدیث متعلق د امام بخاری د تاریخ کبیر نه بلا حواله صرف دا قول نقل کړیدے چه معنی توجهت استعنت بک انتهی۔ د دوئ خیال به داوی چه دا عبارت د توسل بالذات دپاره صریحې عبارت دے۔ حالانکه دا صریحې نه دے۔ کچرے دا صریحې وے۔ نو بیا خو اتوجه الیک بنبیک هم صریحې دے۔ نو د دے د نقل کولو څه ضرورت وه؟

حافظ صاحب! د دے استعنت بک هم هغه مطلب دے۔ کوم چه د بنبیک دے یعنی بدعائک۔ د توسل بالذات د اثبات دپاره د نص صریحې د پیش کولو چیلنج د نن نه مخکښې حنفی محقق علامه آلوسی رح علماؤ ته ورکړیدے چه "ومن ادعی النص فعلیه البیان" او چا ترا اوسه پورے صریحې او ثابت شده نص نه دے پیش کړے۔ نو ما او تا به څه پیش کړو؟

## روایت استشفاع اعرابی

(۴) شلورم دلیل ئے حدیث د فانا نستشفع بک دے۔ حافظ صاحب شاید د خپل مطلب دپاره (ځکه چه حدیث خویه دوئ ته ضرور تول معلوم وی) د دے روایت ټول عبارت نه دے نقل کړے۔ او صرف د دے مذکوره فقرے ئے دا معنی کړیده۔ چه "انته وسیله کوو تا لره" او تفصیل ئے نه دے کړے چه کوم قسم وسیله مراد ده۔ فرض خو د دوئ څخه د قارئین د فائدے دپاره ټول عبارت نقل کوم۔

ان رجلاً قال لرسول الله صلی الله علیه وسلم ... انا نستشفع بک الی الله ونستشفع بالله

یو سړی او وے یارسول الله مونږ تا الله ته سفارشی کړو۔ او الله تعالیٰ تا ته سفارش دپاره پیش کوو۔

[1] مرقات از حاشیه مشکوة ص ۲۳ ج ۱

علیک فسبّح رسول الله صلی الله علیه وسلم حتیٰ رؤی فی وجوه اصحابه فقال ویحک اتدری ما الله تعالیٰ ان الله لا یشفع به علیٰ احد من خلقه شانُ الله اعظمُ من ذلک

تا ته - نو رسول صلے الله علیه وسلم بنا بر تعجب سبحان الله اووے - حتیٰ چه دَ نبی ؐ دَ ناراضګی اثر دَ صحابو په مخونو کښې هم ښکاره شه - نو نبی ؐ او فرمایل ستا په حال دِ افسوس دی - ته دَ الله شان پېژنې ؟ الله ته په مخلوق کښې چا ته سفارشی نشی ګرځولے - دَ الله شان دَ سفارشئ نه ډیر اوچت دے

## مضمون روایت

دَ حدیث دَ الفاظونه صاف طور سره معلومیږی - چه دَ دے صحابی مطلب داوه - چه یا رسول الله مونږ کوم حاجتونه چه الله تعالیٰ ته وړی نو تا دَ هغه دربارته سفارشی پیش کوو - چه ته مونږ دَ پاره هغه ته سفارش اوکړے - او چه تا ته مونږ څه حاجت وړی نو الله تعالیٰ تا ته سفارشی پیش کوو چه هغه مونږ دَ پاره تا ته سفارش اوکی.

دَ الله تعالیٰ په دربار کښې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سفارشی کیدل خو قابل اعتراض خبره نه وه - دَ دے وجه نبی ؐ په دے باندے اظهار دَ خفګان اونکړ. لیکن دَ رسول الله ؐ په دربار کښې دَ الله تعالیٰ سفارشی کیدل یو غلطه خبره وه چه دَ ناپوهئ په وجه دے صحابی کړے وه - نو په دے باندے رسول الله صلی الله علیه وسلم تعجب اوکړ - چه آخر تا ته دومره قدرے هم نه ده معلومه چه الله خپل مخلوق ته سفارشی نشی کیدے - بلکه دَ هغه شان دے نه ډیر اوچت دے.

بیا دَ نستشفع بک مطلب داوے چه مونږ ستا سره دَ الله تعالیٰ ته وسیله ګرځوو - نو په دے معنیٰ سره خو نستشفع بالله علیک هم قابل اعتراض خبره نه وه - ځکه چه ذات دَ الله تعالیٰ خو مونږ په خپلو حاجتونو کښې بل ته پیش کولے شو (واتقوا الله الذی تساءلون به والارحام)

دَ دے روایت هم دغه مطلب علامه آلوسی ؒ بیان کړے دے - چنانچه فرمائی -

لا یصلح دلیلاً علیٰ ما نحن فیه حیث انکر علیه قوله نستشفع بالله علیک ولم ینکر علیه السلام قوله نستشفع بک الی الله لان معنی الاستشفاع به صلی الله علیه وسلم طلب الدعاء منه[1]

دا روایت دَ متنازع فیه مسئلے (توسل بالذات) دَ پاره دلیل نشی ګرځیدے - ځکه چه رسول الله ؐ نستشفع بالله علیک دَ یرے بد اوګڼلو - او نستشفع بک الی الله یے بد اونه ګڼلو - ځکه چه دَ استشفاع بالنبی ؐ مطلب دَ هغوی نه دَ طلب دَ دعا کول دی.

[1] روح المعانی سورة مائده تحت آیت وسیله ۱۲

بهرحال دَ حدیث مطلب بالکل واضح دے۔ چه په دے کښې دَ توسل بدعاء النبیؐ ذکر دے۔ او کچرے دَ حافظ صاحب مطلب هم دَ توسل نه توسل بالدعاء حین حیاة النبیؐ وی نو بالکل صحیح خبره ده۔ او دا حدیث ئے په دلیل کښې پیش کول هم درست دی۔ لیکن افسوس دے چه دوئی خو مطلق وسیله سره دَ نداء غیبی نه ثابتوی۔

رضؓ (۵) پنځم دلیل ئے توسل دَ حضرت عمرؓ

## روایت استسقاء عمرؓ بالعباسؓ

دے په حضرت عباسؓ باندې۔

حالانکه دا بالکل صریح دے په توسل بدعاء الحی کښې۔ او دا مابه النزاع مسئله نه ده۔ دَ دے روایت نه خو دا معلومیږی چه په وخت دَ مصیبت کښې دَ نیکانو خلقو نه او خصوصاً دَ رشته دارانو دَ رسول الله صلعم نه دُعا غوختل پکار دی او کچرے دا توسل بالدعاء نه وه۔ بلکه توسل بالذات وه نو دے کښې شک نشته دے چه ذات دَ رسول الله صلعم دَ ذات دَ حضرت عباسؓ نه غوره دے۔ نو بیا دوئی په ذات دَ رسول الله سره توسل ولے نه نیوو۔ حالانکه په دے مجمع دَ صحابو کښې هیچا هم په ځای دَ توسل بالعباس کښې دَ توسل بالنبیؐ تجویز نه وه پیش کړے نو معلومه شوه چه دَ دوئی په نزد توسل بالذات صحیح طریقه دَ توسل نه وه

دَ حدیث مکمل عبارت دا دے۔

عن انسؓ ان عمرؓ بن الخطاب کان اذا قحطوا استسقی بالعباسؓ بن عبدالمطلب فقال اللهم انا کنا نتوسل الیک بنبینا صلی الله علیه وسلم فتسقینا۔ و انا نتوسل بعم نبینا فاسقنا قال فیسقون [1]

شه وخت چه باران به بند شه او قحط به راغے نو حضرت عمرؓ به دَ عباسؓ دَ دُعا په وسیله سره طلب دَ باران کوو۔ او وئیل به ئے چه اے الله مونږ به ستا در بار ته دَ خپل پیغمبرؐ دعا وسیله کوله نو تا به باران اوکه اوس مونږ دَ خپل پیغمبر دَ تره دعا وسیله گرځوو ستا دربار ته چه په مونږ باران اوکے۔ راوی وائي چه

دَ دے توسل تفصیل دَ ابن صالح په روایت کښې په دے الفاظو سره شوید دے

فلما صعد عمرؓ و معه العباسؓ المنبر قال عمرؓ اللهم انا توجهنا الیک

حضرت عمرؓ سره دَ حضرت عباسؓ نه منبر ته او ختو او اوے فرمایل چه اے الله مونږ تا ته ستا دَ پیغمبر

[1] بخاری ص۱۳۲ ج۱ و ص۵۲۶ ج۱ و مشکوٰة ص۱۳۵ ج۱ باب الاستسقاء ۱۲

بعم نبیک وصنو ابیہ فاسقنا الغیث
ولا تجعلنا من القانطین ثم قال
قل یا ابا الفضل فقال العباس رض
اللهم لم ینزل بلاء الا بذنب ولم
یکشف الا بتوبة وقد توجه بی القوم
الیک لمکانی من نبیک وهذه ایدینا
الیک بالذنوب ونواصینا بالتوبة
فاسقنا الغیث فارخت السماء شآبیب
مثل الجبال حتی اخصبت الارض [1]

دَ تره په دعا سره متوجه شوی یو. نو مونږ په باران
سیراب کړه. او مونږ دَ محرومینو نه مه ګرځوه. او بیا یې
او وے دعا اوکړه اے ابا الفضل! نو حضرت عباس رض
او وے اے الله هر لو مصیبت دَ ګناهونو په وجه راځي
او دَ توبې په وجه لرے کیږي. او دے خلقو دَ رسول الله
په وجه زه ستا در بار ته وسیله کړے یم. او څونږ
دا ګناهګار لاسونه ستا دربار ته متوجه دي. او
سرونه مو دَ توبې په وجه ښکته دي. نو باران اوکه
نو په شیبو شیبو باران او شو او زمکه تره و تازه شوه

دَ دے تفصیل نه صاف معلوم شوه. چه دا توسل فعلی وه. یعنی په دُعاء دَ حضرت عباس رض سره توسل وه. او دا بالکل ثابته خبره ده چه دَ نیکانو خلقو دعا او خصوصاً دَ اهل بیت دُعا یو بهترینه وسیله ده.

بحرے توسل بذات العباس دَ دوی مطلب وے. نو بهتره به یې دا ولے وے چه
قل یا ابا الفضل اے حضرت عباس رض! دعا اوکه. دَ دے نه دا هم معلوم شوه. چه لکه شنګه توسل بالذات صحیح نه دے. دغه رنګے دَ مړو نه طلب دَ دُعا کولو هم نشته دے. ورنه دا بالکل واضحه خبره ده چه دَ نبی ص دُعا یقیناً زیاته قابل قبول ده په نسبت سره دَ دُعا دَ حضرت عباس رض ته. نو دَ صحابه کرامو چه عاشقان او فدایان رسول ص وو. دَ باران دَ پاره دَ حضرت عباس رض دعا وسیله کول او دَ نبی ص دَ روضے مبارکے په خوا کښ دَ هغوی نه دعا نه غوختل (حالانکه دَ ژوندون دَ نبی ص په حالت کښ به دَ باران دَ پاره صحابو همیشه دَ هغوی نه دعا غوختله) دَ دے خبرے واضح دلیل دے چه دَ صحابو په نزد دَ مړو نه طلب دَ دُعا کولو جائز او مفید نه دی.

علامه انور شاه کشمیری رح اګر که دَ ابن تیمیه رح نه دَ توسل باسماء الصالحین په مسئله کښ مخالف دے. او دا قسم توسل دَ حدیث اعمی په بنا جائز ګنړي.
لیکن دَ دے مذکوره حدیث مطلب دوی هم توسل فعلی بیان کړے دے. فرمائي
قلت وهذا توسل فعلی لانه کان یقول. زه وایم چه دا دَ حضرت عباس رض په فعل (دعا) سره

[1] عینی از حاشیه بخاری ص ۱۳۷ ج ۱

لم بعد ذلك قم يا عباس فاستسق
فكان يستسقى لهم فلم يثبت منه
التوسل القولي اي الاستسقاء باسماء
الصالحين فقط بدون شركتهم[۱]

توسل وه. ځکه چه حضرت عمرؓ به دَ دے الفاظو نه پس
او وے چه پاسره اے حضرت عباسؓ! او باران اوغواړه
پس باران به یے اوغوښت. نو دَ دے حدیث نه توسل
قولي یعني بغیر دَ شرکت دَ صالحینو نه په دعا کښې صرف دَ هغوي
په غږ دوي دَ الله تعالیٰ نه استسقاء ثابتیږي.

بهرحال دا حدیث هم دَ حافظ صاحب دَ مطلق توسل بشمول استمداد غیبي
دَ پاره دلیل نه دے. بلکه دَ پاره دَ "توسل بدعاء الصالحین خصوصاً بدعاء اقارب
رسول الله" دلیل دے. فافهم.

## روایت استسقاء اعرابي

(۶) شپږم دلیل یے دا دے چه اعرابي راغے
او رسول الله صلے الله علیه وسلم ته یے دَ
قحط سالے شکایت اوکړو او دا شعر یے اووے.

وليس لنا الا اليك فرارنا ؛ ستا نه بغیر څو نږ بل ځائے دَ تښتیدو او دَ فریاد نشته دے.
واين فرار الناس الا الى الرسل ؛ او خلق به دَ پیغمبرانو نه بغیر بل چاته دَ فریاد دَ پاره او زغلي.

## مضمون روایت

قطع نظر دَ دے نه چه دَ دے روایت حیثیت څه دے؟
جواب یے دا دے چه مدعا دِ مطلق توسل ثابتول دي. او دا
روایت خو صریحي طور باندِ په توسل بدعاء النبيؐ باندِ دلالت کوي. او دَ اعرابي دَ شعر
مطلب دا دے. چه دَ پیغمبرانو نه بغیر دَ بل چا دعا زیات قابل قبول کیدے شي؟ نو
یا رسول الله مونږ ستا دربار ته راغلي یو چه څونږ دَ پاره باران اوغواړه.

زه حیران یم چه حافظ صاحب مخلوق خدا ته مغالطه ورکوي. او که دا استدلال
په طریقه نه پوهیږي. چه ثابتول خو غواړي "توسل مطلق بشمول نداء غیبي" او
دلیل پیش کوي. دَ توسل بدعاء النبيؐ او کیږے دَ دَه مراد دَ مطلق توسل په افراد
کښې یواځے توسل بدعاء الاحیاء وي. نو دا قسم توسل خو چرته په اهل سنت
والجماعة کښې اختلافي پاتے شوے نه دے. نو بیا په دے کښې دَ تصنیف کولو ضرورت
څه وه؟ لیکن صاحب موصوف خو دَ مطلق توسل په آړ کښې دَ امداد دَ پاره دَ بزرګانو
غائبانه طور باندِ بلل او تصرف عطائي ثابتوي.
مګر کیږے دَ ثابتولو مطلب صرف دا حکم کول وي چه "ثابت دے" نو بیا خو یے

[۱] فيض الباري ص۷۸ ج۲ ۱۲

مورچه فتح کړیده. او کچیرے د ثابتولو مطلب په شرعي دلائلو سره مسئله ثابتول وي نو بیا د حافظ صاحب وا وری چه ؎

این خیال است و محال است و جنون

**سند روایت**

حافظ موصوف خو د بیهقي رح د دلائل النبوة په حواله باند صرف روایت نقل کوی. او دا تفصیل نه کوی چه از روئے سند دا روایت څه درجه لری- حالانکه دلائل النبوة د بیهقي رح خود طبقهٔ اولی یا د طبقهٔ ثانیه کتاب نه دے. چه محض د دے نقل علامه د صحت د حدیث او ګرځولے شی. بلکه دا خود طبقه رابعه کتاب دے- او د دے قسم کتاب په نقل کرده روایت باند بغیر د "توثیق د امام فن" نه یا د "تحقیق علمی" نه اعتماد نشی کولے-

د دے حدیث روایت مسلم بن کیسان الضبي الملائي د انس بن مالک رض نه کری. او حافظ بن حجر العسقلاني رح هم دا روایت په فتح الباری کښ نقل کړیدے او بیائے ورباندے جرحه دا کړیده-

وفي اسناده انس ضعف[1] ـ په دے حدیث کښ از روئے سند کمزوری موجود ده-

او په "تهذیب التهذیب" کښ د دے مسلم بن کیسان رح متعلق فرمائی-

قال قوم منکر الحدیث جدًا وقالوا
لیس بشیئ وتکلموا فیه بالضعف والقدح
وقال ابو داود لیس بشیئ
وقال البخاری ضعیف ذاهب الحدیث
وقال النسائی متروک وهکذا قال
الفلاس والدارقطنی
وقال الساجی رح منکر الحدیث[2]

محدثینو ویلی دی- چه دے ډیر زیات منکر حدیثونه نقل کونکے دے- او دوی دا هم ویلی دی- چه دے هیڅ شی نه دے- او دوی د ده ضعف کړیدے- ابو داؤد وائی چه دے هیڅ شی نه دے- امام بخاری وائی دے کمزوری حدیثونه نقل کوی- امام نسائی وائی دے پریخودے شویدے د عمرو بن علی فلاس او دارقطنی ویلی دی- ساجی رح وائی چه دے منکر حدیثونه نقل کوی-

دا خو د حافظ صاحب د پیش کرده روایت علمی پوزیشن دے او الفاظ او عبارت ئے هم صریحی دے په توسل بالدعا کښ. لیکن دوی ئے بنه په "جرأت" سره د مطلق توسل د پاره دلیل ګرځوی-

[1] فتح الباری ص۵۷۴ ج۱۱ [2] تهذیب التهذیب ص۱۳۶ ج۱۰ :

(۷) اووم دلیل ئې آیت دَ «وکانوا من قبلُ یستفتحون علی الذین کفروا» دے۔ حافظ صاحب وائي چه دَ آیت مطلب دا دے چه یهودو به مخکښ دَ پیدا ئیش دَ نبي عم نه دَ هغوئ په ذات سره توسل نیوو۔ پس دَ دے نه معلومه شوه چه توسل بالذات جائز دے۔ او دَ خازن، مدارک او دَ فتح الرحمٰن نه ئې دَ یهودو دا دعا نقل کړیده چه اللهم انصرنا بالنبی الخ

**مفهوم دَ آیت مع گوره**

ه تولونه اول زه دَ دے آیت معنیٰ دَ معتمد و تفسیرونو نه نقل کوم۔ دَ دے معنیٰ نه به پخپله دَ حافظ صاحب دَ استدلال کمزورتیا او ناکامیابي قارئین ته معلومه شي۔

قال محمد بن اسحٰق عن عاصم بن عمرو عن قتادة الانصاری عن اشیاخٍ منهم قال فینا والله وفیهم یعنی فی الانصار و فی الیهود الذین کانوا جیرانهم نزلت هٰذه القصة یعنی ولما جاءهم الخ قالوا کنا قد علوناهم قهرًا دهرًا فی الجاهلیة ونحن اهل شرکٍ وهم اهل کتابٍ و هم یقولون ان نبیًّا سیُبعث الآن نتبعه قد اظلّ زمانه فنقتلکم معه قتلَ عادٍ وارم فلما بعث الله رسوله من قریشٍ واتّبعناه کفروا به۔ ......

امام قتادة انصاري رح دَ خپلو مشرانو نه نقل کوي۔ چه دا آیت زمونږ او دَ یهودو په باره کښ نازل شویدے۔ مونږ دَ جاهلیت په زمانه کښ په دوئ غالب راغلو حالانکه مونږ مشرکان وو۔ او دا اهل کتاب وو۔ نو دوئ به وئیل چه عنقریب به یو پیغمبر پیدا کیږي۔ او مونږ به دَ هغه تابعدار شو او تاسو به دَ هغه په ملګرتیا کښ پشان دَ عاد او دَ ارم قتلوو۔ لیکن هر کله چه الله دا پیغمبر په قریشو کښ پیدا کړو مونږ دَ ده تابعدار شو نو دوئ دَ هغه دَ پیغمبرئ نه انکار اوکړ۔

وقال الضحاک رح عن ابن عباس رض فی قوله «وکانوا من قبلُ یستفتحون علی الذین کفروا» قال یستنصرون یقولون نحن نعین محمدًا علیهم ولیسوا کذٰلک بل یکذبون وقال العوفی رح عن ابن عباس رض یستنصرون بخروج محمد صلی الله علیه وسلم علی مشرکی

امام ضحاک رح دَ ابن عباس رض نه دَ یستفتحون دا معنیٰ نقل کړے ده چه دوئ به امداد غوختلو او وئیل به ئې چه مونږ به دَ محمد صلی الله علیه وسلم سره دَ دے مشرکانو خلاف امداد کوو حالانکه دوئ داسې نه وو۔ عوفي رح دَ ابن عباس رض نه دا معنیٰ نقل کړیده۔ چه دوئ به امداد غوختلو په خروج دَ محمد صلی الله علیه وسلم سره دَ

العرب وقال ابو العالیة رح کانت الیهود تستنصر بمحمد صلی الله علیه وسلم علی مشرکی العرب ویقولون اللهم ابعث هذا النبی الذی نجده مکتوبًا عندنا حتی نعذب المشرکین ونقتلهم[1]

د مشرکین عرب خلاف. ابو العالیه رح فرمائی چه یهودو به د مشرکین عرب خلاف د محمد ص په وسیله سره امداد غوختو او وئیل به ئې چه اے الله هغه پیغمبر پیدا کړے چه موږ په کتاب کښې د هغه ذکر وی. د پاره د دے چه مشرکینو ته عذاب ورکو او دوئ سره جنګ او کو.

د حبر الامة عبد الله بن عباس رض او د قتاده رح ابو العالیه رح د مذکوره تفسیر ونو معلوم شوه. چه د یستفتحون مطلب دا نه دے چه دوئ به په ذات د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره توسل کوو. بلکه مطلب دا دے چه دوئ به د الله تعالی نه طلب د امداد کوو په پیدا کولو د رسول الله صلعم سره.

دا خو دوئ ته د تواة نه معلوم شوے وه. چه دا آخری نبی ع به تمام عرب فتح کوی. نو دوئ به دا دعا کوله چه اے الله هغه پیغمبر پیدا کړے د پاره د دے چه موږ د هغه په ملګرتیا دے مشرکانو ته عذاب ورکړو. او دوئ قتل کړو.

هم دغه مطلب د آیت عامو مفسرینو بیان کړے دے. لکه تفسیر کشاف[1] مدارک[2] سراج المنیر[3] خازن[4] معالم[5] شاه صاحب فرمائی.

"جب غلبہ کافروں کا دیکھتے تو دعا مانگتے کہ نبی آخر الزماں شتاب پیدا ہو. جب پیدا ہوا تو آپ ہی منکر ہوئے."[3]

(۲) دویم معنی د "یستفتحون" علماؤ "یظهرون" کړے ده. یعنی دوئ به په وخت د جنګ کښې یا په نورو موقعو باندې د مشرکانو په مخکښې به د آخری پیغمبر د پیدا کیدو ذکر کوو. او وے به ئې چه عنقریب آخری نبی ع راتلونکے دے. چه د هغه په وجه به تاسو ذلیله کیږئ. او هغه به در باندې غالب کیږی. او خیال ئې داوه. چه دے به په بنی اسرائیلو کښې پیدا کیږی. او چه د دوئ د توقع خلاف هغه په بنی اسمٰعیل (قریشو) کښې پیدا شه. نو دوئ د نسلی عصبیت او د حسد په وجه نه صرف دا چه ایمان ئې ور باندې رانه وړو بلکه اُلټا د هغه دشمنان شو.

د دے تحقیق مطابق دلته کښې "باب استفعال" د باب افعال په معنی دے. یعنی

[1] ابن کثیر ص۱۲۴ ج۱ و[2] کشاف ص۸۱ ج۱ سراج المنیر ص۶۳ ج۱ مدارک ص۴۸ ج۱ خازن ص۷۰ ج۱ معالم ص۶۹ ج۱
[3] موضح القرآن بر قرآن کریم مترجم شیخ الهند ص۱۷ ف ۱۲

"سین" دَ طلب دَ پاره نه دے بلکه صرف دَ تاکید دَ پاره دے - او فتح په معنیٰ دَ اظهار سره ده. نه په معنیٰ دَ غلبے او دَ نصرت سره. لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ "اتحدثونهم بما فتح الله علیکم" "ای بما اظهر الله علیکم فی کتابکم" صاحب کشاف فرمائی -

وقیل معنیٰ "یستفتحون" یفتحون علیهم ویعرّفونهم ان نبیًا یبعث منهم قد قرب اوانه والسین للمبالغة ای یسالون انفسهم الفتح علیهم کالسین فی استعجب واستخرج اویسال بعضهم بعضًا ان یفتح علیهم [1]

بعض علماء وائی چه دَ یستفتحون معنیٰ دا ده چه دوئ به مشرکانو ته دا خبره ښکاره کوله چه ځمونږ نه به عنقریب یو پیغمبر پیدا کیږی - او "سین" دَ مبالغے دَ پاره دے. یعنی دوئ به دَ خپلو نفسونو نه دَ دے پیشن گوئی طلب کوو. لکه چه په استعجب او استخرج کښ سین دَ مبالغے دَ پاره دے. یا مطلب دا دے چه دوئ به دَ یو بل نه دَ دے پیشن گوئی طلب کوو. اه

قاضی بیضاویؒ چه اکثر ادبی او لغوی تحقیقات دَ کشاف نه نقل کوی - دا معنیٰ هم نقل کړے ده. فرمائی -

ان نبیًا یبعث فیهم وقد قرب زمانه والسین للمبالغة والاشعار بان الفاعل یسال ذلک عن نفسه [2]

یعنی دوئ به دا خبره کوله چه عنقریب په مونږ کښ یو پیغمبر پیدا کیږی - او سین دَ مبالغے او دَ دے خبرے دَ اظهار دَ پاره دے چه دوئ به دَ دے پیشن گوئی دَ خپلو نفسونو نه

حضرت حکیم الامة مولانا اشرف علی تهانویؒ حنفی دیوبندی په خپل تفسیر "بیان القرآن" کښ هم دغه معنیٰ غوره کړے ده. او تفسیر ئے هم دَ دے مطابق کړے دے.

رونړو! په دے دواړو معنو کښ تاسو سوچ او فکر اوکړئ. چه په دے کښ چرته دَ "توسل بالذات والحرمة" شائبه قدرے شته دے؟ هر منصف مزاج انسان به دَ دے جواب په نفی سره ورکوی. باقی شو دَ حافظ صاحب نقل کړده تفسیری الفاظ یعنی "اللهم انصرنا بالنبی المبعوث فی اٰخر الزمان" نو دا الفاظ دَ یهودو په سند صحیح سره ثابت نه دی. بلکه دَ هغوئ الفاظ به په دا سے موقعه باندے ... هغه وکوم چه ما دا ... کثیرؒ نه نقل کړیدی. یعنی "اللهم ابعث نبیًا الخ". او که ثابت هم شی. نو دَ "انصرنا بالنبی" نه مراد "انصرنا ببعث النبی وخروجه" دے. او قرینه په دے باندے

---

[1] کشاف ص ۱۶۳ ج ۱ ؛ [2] بیضاوی ص ۳۱ ج ۱ ؛ ۱۲

دَدوئ هغه اقوال دي کوم چه ما مخکښ نقل کړيدي. او مدارک. خازن او جلالين وغيره چه دا الفاظ نقل کړيدي. نو دوئ هم په دغه مطلب سره نقل کړي دي.

(روايت استفتاح يهود بحق محمد صلعم)

دا مذکوره الفاظ خو دَ حافظ صاحب دَ مطلب دَپاره صريحي طور سره مفيد نه دي البته په دے سلسله کښ يو بل ضعيف روايت شته دے. او حافظ صاحب به شائد په وخت دَ تصنيف "کښ هغه روايت مستحضر نه وه. نو دَ انصاف تقاضي دا ده چه راه هغه نقل کړم او علمي جائزه ئے واخلم.

عن عبد الملک بن عنترة عن ابيه عن سعيد بن جبير عن ابن عباس رض قال کانت يهود خيبر تقاتل غطفان فکلما التقوا هُزمت يهودُ فعاذت بهذا الدعاء "اللهم انا نسئلک بحق محمد النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا آخر الزمان الا نصرتنا عليهم فکانوا اذا دعوا بهذا الدعاء هزموا غطفان فلما بعث النبي ص کفروا به فانزل الله "وکانوا من قبل يستفتحون"

حضرت ابن عباس رض فرمائي چه دَ خيبر دَ يهودو به کله دَ بنو غطفان سره مقابله راغله نو دوئ به شکست اوخوړو دا دعا به ئے اوکړه چه "اې الله مونږ دَ محمد صلے الله عليه وسلم دَ حق په وسيله سره تا نه سوال کوو چه تا مونږ سره دَ هغه دَ پيدا کولو وعده کړے ده. نو ته مونږ سره دَ دوئ برخلاف امداد ولے نه کوے. نو چه دا دُعا به دوئ اوکړه. نو بنو غطفان به شکست اوخوړ او چه حضور ص پيدا شه نو دوئ انکار اوکړ. نو په دے باره کښ الله تعالیٰ دا آيت نازل کړه. وکانوا من قبل الآية

**سند روايت**

دا روايت امام حاکم په خپل کتاب "مستدرک" کښ نقل کړے دے. ليکن دَ دے راوي هم هغه عبد الملک دے چه دَ کوم متعلق دَ محدثين جرح او تنقيد مخکښ نقل شوے دے. نو دا روايت يقيناً ضعيف دے. او دَ دے قابل نه دے چه مونږ دَ آيت صحيح او په مستند و روايا تو سره ثابت شوه تفسير پريږدو او دَ دے روايت مطابق تفسير اوکړو.

**مضمون روايت**

په مضمون دَ دے روايت باندې هم متعدد اعتراضونه وارديږي. مثلاً يو اعتراض دا دے. چه دَ دے نه معلوميږي چه دا آيت دَ "يهودو دَ خيبر او دَ بنو غطفان" په باره کښ نازل شوے دے. حالانکې

تمام مستند روایات چہ پہ دے بارہ کښې ابن ابی حاتمؒ ابن جریرؒ وغیرہ نقل کړیدی. دَ هغوئی نه هم دا معلومیږی. چه دا آیت دَ مدینے منورے دَ یهودو "بنو نضیر او بنو قریظه" او دَ "اوس و خزرج" په باره کښې نازل دے۔

او دویم اعتراض دا دے چه دَ دے نه معلومیږی. چه دَ دے دُعا په وجه به یهودو په بنو غطفان باندې غلبه حاصله کړه. حالانکه تاریخي ثبوت دَ دے خلاف دے او دا سے یوه واقعه هم دَ مستند تاریخ نه نشي پیش کیدے. چه دَ خیبر یهودو چرته په بنو غطفان باندې غلبه حاصله کړیده۔

## روایت توسل آدم بحق محمد صلی اللہ علیہ وسلم

(۸) اتم دلیل دَ حافظ صاحب دا دے. چه حاکم په مستدرک کښې نقل کړیدی. چه آدمؑ دَ محمدؐ په حق توسل نیولے وه۔

په مقدمه کښې ما طبقات دَ محدثینؒ هم دے دَ پاره بیان کړیدی. چه دَ استدلال په وخت کښې دَ معتمد او دَ غیر معتمد کتاب فرق او کړے شي. لیکن افسوس دے چه حافظ صاحب بالکل آزادانه طور باندې سنه په زړه ورتیا سره رسول اللہ صلعم ته نسبت دَ یوے خبرے کوی. او دا تفتیش نه کوی. چه از روئے سند دا نسبت قابل اعتماد دے او کنه نه دے. بکار خو دا دی چه دَ طبقهٔ ثالثه یا دَ طبقهٔ رابعه دَ کتاب نه هیڅ یو روایت بلا اسناد بیان نه کړے شي. ځکه چه دَ دے طبقے کتابونو التزام دَ صحیح احادیثو دَ ذکر کولو نه دے کړے.

سند او نقل دَ احادیثو ثقه عن ثقه خو دَ خصوصیاتو دَ اُمت محمدیه نه دے. او دا دَ دین نه یوه حصه ده. یعنی لکه څرنګ چه دَ صحیح حدیث الفاظ نقل کول عبادت او کار ثواب دے. دغه رنګے سند دَ حدیث بیانول او دَ ثقه غیر ثقه راویانو تحقیق و تفتیش کول هم عبادت او کار ثواب دے. علامه سیوطیؒ دَ ابن حزمؒ نه نقل کوی.

نقل الثقة عن الثقة یبلغ به الی النبی صلی اللہ علیہ وسلم مع الاتصال خص اللہ به المسلمین دون سائر الملل[۱].

نقل دَ ثقه راوی دَ ثقه نه چه هم دغه رنګے رسیږی دا روایت نبیؐ ته بغیر دَ انقطاع نه خاصه دَ دے امت ده نه دَ نورو اُمتونو.

عن ابن المبارکؒ یقول الاسناد

عبد اللہ بن مبارکؒ وائی چه بیان دَ سند

---

[۱] تدریب الراوی ص۱۵۸ ج ۲ ط ۱۲

من الدين ولولا الاسنادُ لقال من شاء ماشاء

دَ دین یوه حصه ده. او کچرے اسناد په دین کښ نه وے نو دُنیا به هر چا چه څه ښے خوښه وے۔

وعنه یقول بیننا وبین القوم القوائم یعنی الاسناد بله

او هم دوئی فرمائیلی دی۔ چه ځمونږ دَ پاره دَ حدیث خپے اسناد دے۔۔

**سَنَدِ روایت**

حافظ صاحب ته خو به شاید الهامی طور باندِ دَ دے روایت صحت معلوم شوے وی۔ لیکن مونږ دومره زړه ورشوی نه یو۔ دَ دے وجه نه دَ دے روایت سند نقل کوو۔ او گورو چه په راویانو کښ څوک غیر ثقه راوی خو نشته دے۔

(۱) سند الحاکم رح. عبد الله بن مُسلِم الفهری۔ اسمٰعیل بن سلمه۔ عبد الرحمٰن بن زید بن اسلم۔ ابوه زید۔ جده اسلم۔ عمر بن الخطاب رض۔ (قال الحاکم هو اول حدیث ذکرته لعبد الرحمٰن فی هذا الکتاب وقال هو صحیح) مرفوعًا وموقوفًا علیه انه قال

لما اقترف آدم الخطیئة قال یارب اسئلک بحق محمد لما غفرت لی قال کیف عرفت محمدًا صلی الله علیه وسلم قال لانک لمّا خلقتنی بیدک ونفخت فیّ من روحک رفعتُ راسی فرایتُ علیٰ قوائم العرش مکتوبًا "لا اله الا الله محمد رسول الله" فعلمتُ انک لم تضف الی اسمک الا احبَّ الخلقِ الیک قال صدقتَ یاآدم ولولا محمد ص ماخلقتک۔

هر کله چه آدم ع نه غلطی اوشوه۔ نو دوئ او وے۔ چه اے الله زه په حق دَ محمد ص سره سوال کوم چه ماته بخنه اوکړے۔ نو الله تعالیٰ ورته او وے۔ چه تا محمد ص څرنګ اوپیژندلو۔ نو دوئ او وے چه هر کله تا زه په خپل لاس جوړ کړم او روح دِ راکښ واچوو نو ما چه سر اوچت کړو نو په عرش باندِ دا کلمه لیک وه چه لا اله الا الله محمد رسول الله۔ نو زه پوهه شوم چه تا دَ خپل نوم سره په توله مخلوق کښ دَ محبوب ترین هستئ نوم یو ځائ کړے دے۔ نو الله ته ورته او وے چه رښتیا دِ اووے۔ کچرے محمد ص نوے نو ما به ته هم نوے پیدا کړے۔

دا روایت په مختلف الفاظو سره طبرانی رح په معجم صغیر کښ او ابو نعیم رح بیهقی رح علامه الآجری رح وغیرهم په خپلو تصنیفاتو کښ نقل کړیدے۔ لیکن از روئ سند دا روایت بالکل ضعیف دے۔ ځکه چه دَ دے راوی عبد الرحمٰن بن زید بن اسلم دے۔ او دے په اتفاق دَ مُحدِّثینِ سره ضعیف دے۔ بلکه دَ موضوعی روایاتو نقل

ل مسلم شریف ص۱۲ ج۱ وکتاب الجرح والتعدیل لابن ابی حاتم ص۱۹ ج۱ وتدریب ص۱۸۳ ج۲؛

کونکے دے۔ ابن تیمیہؒ فرمائی۔

قلتُ وعبد الرحمٰن بن زید بن اسلم ضعیف باتفاقهم یغلط کثیراً۔ ضعّفه احمد بن حنبلؒ وابو زرعۃؒ وابو حاتمؒ والنسائیؒ والدارقطنیؒ وغیرهم

عبد الرحمٰن په اتفاق دَ محدثینُ سره ضعیف دے احمد بن حنبلؒ۔ ابو زرعہؒ۔ ابو حاتمؒ۔ نسائیؒ دارقطنیؒ دہ تہ کمزورے ویلی دی۔

او امام حاکمؒ اگرکہ دے روایت تہ "صحیح" ویلی دی۔ لیکن علماء حدیث وائی چہ دَ امام حاکم پہ تصحیح اعتماد نہ دے۔ ځکہ چہ دے پہ دے بارہ کښی سخت "متساهل" او کمزورے واقع شوے دے۔ او هم پہ دغہ وجہ باندے علامہ ذهبیؒ پہ مستدرک باندے تعلیقات لیکلی دی۔ او پہ کوم ځائی کښی چہ دَ دہ نہ تساهُل شوے دے۔ علامہ مذکور دَ هغہ نشاندهی کړے دہ۔ او دَ دے روایتِ مذکورہ دَ تصحیح متعلق علامہ موصوف دَ حاکم دَ رائی مخالفت کړے دے۔ او فرمائیلی ئے دی

انه حدیثٌ موضوعٌ مکذوبٌ وفی سنده ضعفاء۔

دا موضوعی او دروغژن حدیث دے۔ او دَ دہ پہ سند کښی ضعیف راویان راغلی دی۔

علامہ سیوطیؒ هم پہ "مناهل الصفاء فی تخریج احادیث الشفاء" کښی دے تہ موضوعی ویلی دی۔ شیخ الاسلام ابن تیمیہؒ فرمائی۔

هو من الاحادیث الموضوعة لاینبنی علیه حکماً شرعیاً الاجاهلُ بادلة الاحکام [1]

دا دَ موضوعی احادیثُ نہ یو حدیث دے۔ پہ دے باندے یو حکم شرعی هم هغہ کس بنا کوی۔ چہ دَ ادلو علم ورتہ حاصل نہ وی۔

دَ حاکمؒ دَ تساهُل متعلق امام المحدث الکبیر الذهبیؒ فرمائی۔

لاریب اَنّ فی المستدرک احادیث کثیرةً لیست علی شرط الصحة بل فیه احادیثُ موضوعةٌ شانَ المستدرکَ باخراجها فیه [2]

پہ دے کښی ځہ شک نشتہ دے۔ چہ پہ مستدرک کښی داسے حدیثونہ شتہ دے۔ چہ دَ صحت شرطونو باندے نہ دی برابر۔ بلکہ پہ دے کتاب کښی داسے موضوعی روایتونہ هم شتہ دے چہ مستدرک پہ هغے بد رنگ شوے دے۔

علامہ ابن حجرؒ پہ "لسان المیزان" کښی فرمائی چہ امام حاکم فی نفسہ دَ لوئی شان امام دے۔ لیکن علماء وائی چہ دَ مستدرک دَ تصنیف پہ وخت کښی دہ

[1] کتاب الاستغاثہ ص۶۰ [2] التذکرۃ ص۲۳۲ ج۳ وهکذا فی المیزان ۱۲

عُمر آخری وہ۔ او هم دا وجه ده چه ډیر راویان ده په "کتاب الضعفاء" کښې په متروکینو کښې شمار لی دی۔ او د دوئ نقل کړده روایاتو باندې ئې د استدلال کولو نه په سختۍ سره منع کړېده۔ او سره د دې نه پخپله په مستدرک کښې د دغې متروکینو نه د بعض روایات نقل کړیدی۔ او صحیح ئې ورته ویلی دی مثلاً د عبد الرحمٰن بن زید یو حدیث ده په مستدرک کښې نقل کړیدے۔ حالانکه ده دا عبد الرحمٰن په ضعفاء کښې شمار لے دے او ویلي ئې دی۔ چه دے د خپل پلار (زید) نه داسې موضوعي روایات نقل کوی۔ چه په اهلِ فن د حدیث باندې د هغې موضوعیت واضح دے۔ نو بو جهئې هم په دے عبد الرحمٰن دے علامہ ذهبی په تذکرہ کښې د "خطیب بغدادی" نه هم د حاکم متعلق د دے قسم تنقید نقل کړے دے۔

ذهبی د ده متعلق د ابن طاهر دا قول نقل کړیدے۔ چه ما یو ځل د حاکم متعلق د ابو اسمٰعیل الانصاری نه تپوس اوکړ۔ نو هغه راته اووے۔ چه دے اگر که امام د فنِ حدیث دے۔ لیکن د مسلک په لحاظ "رافضی خبیث" دے۔ نو ما ورته اووے۔ چه انصاف پکار دے۔ دراصل دے رافضی (صدیق اکبر او فاروق اعظم رض ته مستحق د خلافت نه وئیلو نکے۔ گوهر) نه دے۔ بلکه صرف "شیعی" دے (یعنی د اهل بیت فضائل ډیر بیانونکے او دوئ ته زیات میلان کونکے دے)

مولانا خلیل احمد سهارنپوری دیوبندی فرمائی۔

قال العینی فی شرح البخاری فی بحث الجهر ببسم الله الرحمٰن الرحیم۔ فالحاکم قد عرف تساهله وتصحیحه للاحادیث الضعیفة بل الموضوعة

علامہ عینی حنفی په شرح د بخاری کښې په بحث د جهر بالتسمیہ کښې فرمائی۔ چه د حاکم دا کمزوری مشهوره ده چه دے ضعیفو بلکه موضوعي روایاتو ته هم صحیح وائی۔ اھ

بهرحال از روئے سند دا روایت ضعیف دے۔ بلکہ موضوعي دے۔ او تصحیح د حاکم لره څه اعتبار نشته دے۔ نو په دے باندې استدلال کول یا خو کم فهمي ده او یا بیلے انصافي ده۔

لسان المیزان ص۲۳۳ ج۵ ؛ ۲ التذکرہ ص۲۳ ج۳ ۳ لسان المیزان ص۲۳۳ ج۵ و تذکرہ ج۳ ص۲۳۳
۴ بذل المجهود ص۱۲۱ ج۱ ؛ ۲

| مضمون حدیث | په مضمون دَ دے روایت باندِ هم متعدد اعتراضونه او جرحے وارد یږی. دَ ټولونه اولنِ او مضبوطه جرحه خو دا |
|---|---|

ده. چه دَ دے نه معلومیږی. چه آدمؑ دُعادَ بخښنے دَ عرش نه زده کړے وه. حالانکه دَ قرآن کریم نه صاف طور سره معلومیږی. چه هغه کلمات چه دَ هغوی په ذریعه معافی شوے وه. هغه بغیر دَ واسطے نه براه راست دَ الله تعالیٰ دَ جانب نه دَ آدمؑ زړه مبارک ته غورځولے شوے وُے. (فتلقیٰ آدم من ربه کلمات فتاب علیه) دَ تلقی معنیٰ "الاخذ عن ظهر القلب" ده. یعنی بغیر دَ واسطے نه صرف الهامی طور باندے زده کول.

دویم اعتراض دا دے. چه دا روایت وائی چه بخښنه په وسیلے دَ حق دَ محمدؐ سره شوے ده. او دَ قرآن کریم دَ سورة اعراف نه معلومیږی چه دوی په دعا کښ دا کلمات ویلی وُے. (ربنا ظلمنا انفسنا وان لم تغفرلنا وترحمنا لنکونن من الخاسرین) او په سورة بقره کښ کوم کلمات مجمل او مبهم پریخودے شوے وُے. دَ هغے بیان هم دغه دُعا ده.

دریم اعتراض دا دے چه دا روایت باواز بلند وائی چه آدمؑ او دَ هغه اولاد دَ محمدؐ په وجه پیدا شوی دی. او قرآنِ کریم کښ فرمائی چه ټول مخلوق یم دَ عبادت دَ پاره پیدا کړی دی. (وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون).

رونړو! اګر چے دَ دے روایت مضمون صحیح وُے. نو هم دا قابل استدلال نه وُه ځکه چه سنداً ضعیف بلکه موضوعی دے. لیکن دا خو دَ مضمون په لحاظ هم په درینو طریقو سره دَ قرآن کریم نه خلاف دے. نو څرنګه به قابل دَ استدلال اوګرځی؟

لیکن حافظ صاحب قابل غیر قابل نه ګوری. خو دَ خپل مطلب دَ پاره چه څه "تورے کریښے" بیا موځی نو دا دَ ده دَ پاره غنیمت وی. دَ دے قسم صورت حال متعلق به مونږ نورڅه او وایو چه سه این کار از تو آید و مردان چنین کنند؛

لیکن دا سے "مردان" ته به مونږ دا هم او وایو چه دا سے "مردان"، هم شته دے چه دَ دے قسم تورو کرخو پرده دری کوی. سه

هر بیشه ګمان مبر که خالی است     شاید که پلنګ خفته باشد؛

نه پوهیږم چه داخبرے به د حافظ صاحب زړه ته ورد لسوزی۔ لیکن ؎

من آنچه شرط بلاغ است باتو میگویم　　تو خواه از سخنم پند گیر خواه ملال

## روایت استشفاع اعرابی

(۹) نهم دلیل د حافظ صاحب د العتبی رح منددرجه ذیل روایت دے۔

ان الاعرابی جاء قبر النبی صلی الله علیه وسلم فبکی (وفی روایة فرمی بنفسه الی قبر النبی صلی الله علیه وسلم وحثی علی رأسه من ترابه) وقال یا خیر الرسل ان الله قد انزل علیک کتابا صادقا قال فیه "ولو انهم اذ ظلموا الآیة" وقد جئتک مستغفرا من ذنبی ومستشفعا بک الی ربی ثم استغفر وانصرف (قال الراوی) فرقدت فرأیت النبی صلی الله علیه وسلم فی نومی وهو یقول الحق الرجل وبشره ان الله غفر له بشفاعتی (وفی روایة فنودی من القبر انه قد غفر لک)

یو اعرابی د حضور صلعم روضے مبارکے ته راغی او اوئے ژړل. او اوئے وے چه اے سردارہ د پیغمبرانو الله تعالی په تا باندے کتاب نازل کړے دے چه په هغے کښې ئے فرمائیلی دی. چه ولو انهم اذ ظلموا الخ نو زه تا ته راغلے یم. په دے حال کښې چه د خپلو گناهونو بخښنه غواړم۔ او ستا د رب په دربار کښې د خپلځان د پاره طلب د سفارش کوم۔ (راوی وائی) چه زه اوده شوم نو رسول الله صلعم مې په خوب کښې اولیدل چه ما ته ئے اووے چه لاړ شه او هغه سړی ته خوشخبری ورکه. چه الله تعالی تا ته ستا د سفارش په وجه بخښنه اوکړه۔ اهـ

(تنبیه) حافظ صاحب نه خو اصل عبارت نقل کړیدے۔ او نه ئے څه تفصیل کړے دے۔ دا خدمت د دوی ځما په ذمه دے۔)

## سند روایت

حافظ صاحب د دے روایت نه هغه غیبی نداء ثابتوی. چه د قرآن کریم بے شماره آیتونه د دے په ناجائز کیدو باندے ما مخکښې نقل کړی دی۔ نو د دے روایت اصلی جواب خو هم هغه آیتونه دی۔ او بیا مونږ په دے حیران یو چه اکابرو صحابؤ په ډیرو سختو موقعو کښې د حضور م نه دعا غوختو د پاره روضے مبارکے ته ندی راغلی او نه ئے د خپلو گناهونو د معافئ د پاره هڅې دا کار کړے دے۔ نو د دے اعرابی دا فعل بشرط ثبوت آیا دومره قوت لری چه مونږ د اکابرو صحابؤ تعامل پریګدو؟ دا جواب بشرط ثبوت دے۔ لیکن حقیقت خو دا دے چه دا روایت

خو اکثر مصنفین بلا سند ذکر کوي. محمد بن قدامه حنبلي په "المغني" کښې، ابن عساکر په خپل تاریخ کښې او ابن الجوزي رح وغیرهم د دے روایت سند ونه صرف "محمد بن حرب بن هلال" ته رسولی دی. او هغه هم اکثر په ضعیف راویانو باندې مشتمل دی. بیهقي رح په ضعیف ترین سند سره دا روایت د "محمد بن روح بن یزید" نه هم نقل کړیدے.

علامه ابن عبد الهادي رح په الصارم المنکي کښې فرمائي چه بعض خلق خو دا قصه بلا سند نقل کوي. او بعض د محمد بن حرب الهلالي په واسطه سره د ابو الحسن الزعفراني نه نقل کوي. او بعض دروغژنو خلقو حضرت علي رض ته د دے یو سند هم د ځان نه جوړ کړے دے. او هغه دا دے.

(ابو الحسن علي بن ابراهیم بن عبد الرحمن الکرخي رح. علي بن محمد بن علي. احمد بن محمد الهیثم رح. ابوه محمد. جده الهیثم. سلمة بن کهیل. ابو صادق. علي بن ابي طالب قال قدم علینا اعرابي بعد ما دفنا رسول الله بثلثة ایام فرمي بنفسه الی قبر النبي علیه السلام وحثی علی رأسه الخ)

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

وهذا خبر منکر موضوع واثر مختلق مصنوع، لا یصح الاعتماد علیه ولا یصح المصیر الیه واسناده ظلمات بعضها فوق بعض والهیثم جد احمد بن محمد اظنه ابن عدی الطائي فان یکنه فهو متروک کذاب وان لا یکنه فمجهول (ثم نقل کلام الناس في الهیثم ونقل انه کان کذابا یضع الحدیث علی الثقات تعمدا) [1]

دا یو موضوعي او منکر خبر او د ځان نه جوړ شوے اثر دے. په دے باندې اعتماد نشي کیدے. او نه د استدلال د پاره دے ته رجوع کول جائز دي. د دے اسناد تیارې دي چه د یو بل نه تورے تیرے دي. او الهیثم نیکه د احمد بن محمد ځما په خیال کښې ابن عدی الطائي دے. نو که چرے دے وي نو دا خو متروک او دروغژن دے او که دے نه وي نو بیا مجهول دے. (د دے نه بعد ابن عبد الهادي رح د محدثینو نه نقل کوي. چه هیثم دروغژن او ثقه راویانو ته قصدًا موضوعي روایات منسوب کوي)

بهرحال دا روایت موضوعي دے. او قابل استدلال نه دے. او بیا خصوصًا د هغه مسئلے د پاره خو بالکل قابل استدلال نه دے. کوم چه د تعامل د صحابو نه خلاف وي.

[1] الصارم المنکي ص۲۰۳ ج۳ :

# روایت دَ دریچے په روضے مبارکے کے دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ

(۱۰) لسم دلیل ئې دا دے چه حضرت عائشے رض دَ قحط په زمانه کښ صحابو ته په روضے مبارکه کښ دَ دریچے دَ پرېخودو مشوره ورکړے وه. الفاظ دَ روایت دا دی.

عن ابی الجوزاء رح قال قحط اهل المدینة قحطاً شدیداً فشکوا الی عائشة رض فقالت انظروا قبر النبی صلی الله علیه وسلم فاجعلوا منه کوی الی السماء حتی لایکون بینه وبین السماء سقف ففعلوا فمطروا مطراً حتی نبت العشب وسمنت الابل حتی تفتقت من الشحم فسمی عام الفتق. (رواه الدارمی رح) [1]

یو ځل په اهل دَ مدینے منورے باندِ سخت قحط راغی. نو دوئ حضرت عائشے رض ته دَ دے شکایت اوکړه. نو دے او فرمایل چه قبر دَ نبی ع اوګورئ او دَ دے او دَ آسمان په مینځ کښ په دا سے شان سره سورے پریکړئ چه په مینځ کښ چت حائل نه وی. نو دوئ دا سے اوکړل او ډیر زیات باران اوشه. او واخه زرغون شو. او اوښان غاړېه شو حتی چه ډیر غوړ والی نه نزدے وو چه شلیدلے وے.

## سندِ روایت

دا روایت صرف دارمی رح په مندرجه ذیل سند سره نقل کړے دے.

ابوالنعمان محمد بن الفضل البصری المعروف بعارم[1]. سعید بن زید[2]. عمرو[3] بن مالک النکری رح. ابوالجوزاء اوس بن عبد الله. قال قحط الخ.

دَ دے سند اولنے راوی ابوالنعمان اګرکه دَ بخاری او مسلم راوی دے. او ثقه دے. لیکن دَ ده متعلق امام بخاری رح ابوحاتم الرازی رح دارقطنی رح ابن حبان رح نسائی رح ابوداؤد رح فرمائی چه په آخر عمر کښ دَ ده په دماغ کښ نقصان راغلے وه. دَ دے وجه نه هم دے مذکوره اماموں دَ ده حدیثونه دوه قسمونه کړی دی یو قسم هغه دے چه دَ دے نقصان نه اول ده دَ هغے روایت کړے دے. او هم دَ دے قسم روایات بخاری او مسلم نقل کړیدی. او دویم هغه دی چه پس دَ دے نقصان نه ده دَ هغے روایت کړے دے. او دا قسم روایات هغه چا نقل کړیدی چه هغوئ التزام دَ صحیح روایات دَ جمع کولو نه دے کړے. او دَ دے روایت متعلق پته نشته دے چه دَ کوم زمانے دے. نو حدیث مجهول الحال

[1] مشکوٰة ص ۵۴۵ ج ۲، ۲

او هر کله چه مونږ سره د باران غوښتو یا د نورو حاجتونو د پاره بهترین قسم دعا کانے موجود دی۔ او ثابت شده وسیلے یعنی "عبادت" او "اسماء حسنی" هم مونږ سره شته دے. نو څه ضرورت دے. چه د یو داسے حدیث په روشنائی کښ نوے وسیله را او باسو چه هغه مجهول الحال روایت دے. د (دغ مایرېښک الی مالایرېښک) تقاضی خو دا ده چه مونږ د هغه وسیلو نه کار واخلو کومے چه بلا شک وشبه ثابتے دی۔ او په هغه روایاتو او نصوص باندے عمل اوکو چه یقیناً ثابت دی۔

دویم راوی سعید بن زید هم مختلف فیه راوی دے۔ لکه چه د "تهذیب التهذیب" د مطالعے نه معلومیږی۔

دریم عمرو بن مالک اگر که رشتنے راوی دے۔ خو د ده نه وهمی غوندے روایتونه هم نقل شوی دی. کذا فی التقریب۔

څلورم راوی ابو الجوزاء اگر که مشهور تابعی دے. لیکن دے په ارسال د حدیث کښی هم مشهور دے۔ ابن عبد البر رح تمهید کښ لیکی چه د ده ملاقات د عائشه رض سره نه دے شوے۔ نو حدیث مرسل خو یقیناً شو. او مرسل اگر که د فقهاء احناف په نزد حجت دے لیکن اکثر محدثین دے نه قابل استدلال نه وائی۔

حاصل دا دے چه دا حدیث اگر که یقیناً ضعیف نه دے. لیکن یقیناً صحیح هم نه دے. بلکه مجهول الحال دے. نو د محدثانه تحقیق او د انصاف تقاضی دا ده. چه د استدلال په وخت کښ داسے روایت پیش نه کړے شی۔

**مضمون حدیث** مضمون د دے روایت په داسے موقعه کښ د تعامل د صحابه نه خلاف دے. لکه چه د قحط په زمانه کښ به صحابه کرامو د استسقاء د پاره د الله په دربار کښ په هیئت اجتماعی سره دعا کانے کولے۔ او د نبی نه خلقو دعا به یے وسیله کړځوله. لکه استسقاء د عمر رض په دعا د حضرت عباس رض سره وکړے په روضے مبارکے کښ دریچه پرانخو دل وسیله کرځیدے شوے. نو دا خو دومره گران کار نه وو۔ دوئ به ځای د دے چه د حضرت عباس رض نه طلب د دعا کولے۔ روضے مبارکے کښ به یے دریچه پریخے وه۔ نو په وخت د ضرورت کښ به باران کیدے شو۔

رونړو! حقیقت دا دے چه دَ دریځے پریخودو دا وسیلے یو بالکل غیر معقوله غونډ خبره معلومیږی۔ اګرکه مرقات۔ لمعات وغیره کښ دَ دے ځنړ توجیهات بیان شوی دی۔ مګر یوه هم کامیابه او قابل اطمینان وجه نه ده۔

لیکن سره دَ دے تولو خبرو نه دا روایت خو دَ حافظ صاحب دَ مطلب اثبات هم نه کوی۔ ځکه چه په دے کښ دَ توسل ذکر نشته دے۔ بلکه په دے کښ خو دَ سره دَ دعا الفاظ نشته دے۔ بلکه دا دَ حضرت عائشے رض یو کرامت دے۔ چه دے یوه طریقه او خوده نو الله تعالیٰ په دغه موقع باندِ باران اوکړو۔ دَ دے وجه نه صاحب دَ مشکوٰة دا روایت په "باب الکرامات" کښ نقل کړے دے۔ او شیخ عبدالحق رح هم دا واقعه په کراماتُ دَ حضرت عائشے رض کښ شمار کړیده۔ دا څه مستقله وسیله دَ باران غوښتو خو نه ده۔ چه حافظ صاحب ئے دَ توسل مطلق په دلائلو کښ شماری۔

(۱۱) یوولسم دلیل ئے دا دے چه دَ "تُستر" خلقو به دَ حضرت دانیال ع سره دَ باران دَ پاره توسل نیوو۔

زَه حیران یم چه دَ "تُستر" دَ خلقو دا فعل څنګه حجت اوګرځیدو۔ کچرے دَ دوی هغه کارونه چه دَ اسلامی دور نه قبل یم دوی کول۔ شرعی حجت او دلیل کیدے شی نو بیا خو دَ دوی نور ډیر غلط کارونو متعلق هم حافظ صاحب له دَ جواز فتوی ورکول پکار دی۔

حقیقت دا دے چه دَ دوی دا فعل (کچرے ثابت شی) غلط وه۔ او آینده دَ پاره هم دَ دے غلطے خطره وه۔ دَ دے وجه نه هرکله چه ابو موسیٰ اشعری رض حضرت عمر رض ته دَ دانیال ع دَ لاش مبارک دَ موندلو اطلاع ورکړه۔ نو هغوی حکم اوکړه چه دا لاش دِ په داسے طریقه سره دفن کړے شی چه عوامو ته دَ قبر ځائی معلوم نه وی۔

نو کچرے دَ دانیال ع او دَ هغه دَ قبر په وسیله سره توسل جائز او ښه کار وے۔ نو بیا خو دا لاش موندل یو نعمت غیر مترقبه وه۔ او پکار وو چه دَ دوی قبر او روضه مبارکه ئے ښه په شاهانه طریقے سره جوړ کړے وے۔ او خلقو ته عام اعلان شوے وے۔ چه دَ دانیال ع روضے مبارکے ته دَ قحط سالئے په وخت کښ دَ توسل دَ پاره ځئے او دَ ده په وسیله سره باران غواړئے۔ حالانکه فاروق اعظم په ځائے دَ اعلان

کښې دَ دے لاش مبارک دَ پوشیده ساتلو اهتمام کوی. چنانچه شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ فرمائی۔

لما فتح المسلمون "تُستُر" وجدوا فیها قبرَ دانیال[2] وکان اهل البلد یستسقون به فکتب فی ذلک ابو موسیٰ رضی الله عنه الی عمر رض فکتب الیه ان احفر بالنهار ثلثة عشر قبرًا وادفنه فی اللیل فی واحدٍ منها لئلا یفتتن به الناس فیستسقون به[1]

هر کله چه مسلمانانو "تستر" فتح کړ۔ نو په دے کښې ئے دَ دانیال[2] قبر بیا مونده چه دَ دے خارئے خلق به دَ ده په وسیله سره باران غوختو۔ نو په دے باره کښې ابو موسیٰ رض حضرت عمر رض ته اولیکل نو هغه جواب کښې اولیکل چه دَ ورځے دیارلس[13] قبرونه اوکنه او دَ شپے دا لاش په یو قبر کښې دفن که۔ چه خلق په فتنه کښې واقع نشی۔ او دَ ده په وسیله باران اونه غواړی

(۱۲) دولسم[12] دلیل ئے دا دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به فقراء مهاجرینو باندِ توسل نیولے وه۔

حالانکه دا خو توسل بالدعاء وه۔ یعنی چونکه فقراء مهاجرین مصیبت زده وو او دَ مصیبت زده دَ دُعا دَ قبلیدو زیاته توقع کیدے شی دَ دے وجه نه به رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ دوی دَ دُعا په وسیلے سره دَ الله نه طلب دَ فتح او دَ امداد کوو. دَ حدیث صحیح الفاظ دا دی

عن اُمیّة بن خالد بن عبد الله بن اسید عن النبی صلی الله علیه وسلم انه کان یستفتح بصعالیک المهاجرین (رواه فی شرح السنة)[2]

رسول الله صلی الله علیه وسلم به دَ فقراء مهاجرینو دَ دعا په وسیله دَ الله تعالیٰ نه طلب دَ فتح او دَ امداد کوو۔ (حافظ صاحب دَ یستفتح په ځائے یتوسل نقل کړیدے۔ گوره۔

ملا علی قاری حنفیؒ دَ دے روایت په شرح کښې وائی۔ چه ای وببرکة دعائهم .... وقال ابن الملکؒ وفیه تعظیم الفقراء والرغبة الی دعائهم والتبرک بوجودهم[3]

یعنی دَ دوی دَ دعا په برکت سره به ئے طلب دَ فتح کوو ابن ملکؒ وائی چه په دے حدیث کښې دَ فقراؤ تعظیم بیان شوے دے۔ او دوی نه دعا غوختلو ته رغبت ورکولے شوے دے

دا خو دَ نبی علیه السلام پوشاهانه خوئے وه چه دَ ځان خکته خلقو نه هم دَ دعا طلب به ئے کولو۔ سه شاهاں چه عجب گر بنوازند گدا را ۞

[1] الرد علی البکری ص۲۸۲ ؛ [2] مشکوٰة ص۴۴۷ ج۲ ؛ [3] مرقات از حاشیه مشکوٰة ص۴۴۷ ج۲ ؛

## روایت دَ زلزلے او دَ اور په زمانه دَ حضرت عمرؓ کښې

(۱۲) دولسم دلیل يې دا دے. چه دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښې به هر کال په مدینه منوره کښې اور حمله کوله. نو دوی خپل غلام ته خپل څادر ورکړه. او ورته يې اووے. چه لاړ شه او وايه چه اے اوره دا دَ حضرت عمرؓ څادر دے نو چه ده داکار اوکړه نو اور فی الحال واپس شه او بیا رانغے.

او هم دغه رنګے دَ دوی په زمانه کښې زلزله راغله نو زمکه يې په دُره باندے اووهله او ورته يې اووے چه او دیکه زه عادل بادشاه يم نو زمکه اودریده.

## ثبوت او عدم ثبوت روایت

حافظ صاحب دا دواړه واقعے بغیر دَ سند نه صرف دَ "مجالس سنیه" په حواله باندے نقل کړیدی. نو دَ دواړو واقعاتو متعلق واضح جواب خو هم دا دے چه "صحیح او ثابت شده سند بیان کړه" بظاهر خو دا بالکل غلط او دَ ځان نه جوړے شوے واقعے معلومیږی. ځکه چه په تکوینی امورو کښې الله تعالے هیڅوک مختار او مستقل نه دے کړے چه څه مصیبت راشی نو دے ورته حکم اوکړی. چه لرے شه نو هغه لرے شی. مختار کل صرف الله تعالے دے او دَ دغه اختیار کل صفت بغیر دَ الله تعالے نه په بل چا کښې نه ذاتاً موجود دے او نه عطاءً. خدای پاک په خپل حکم تکوینی کښې هیڅ څوک نه شریکوی. په واضح الفاظو کښې فرمائی. چه

قل من بیده ملکوت کل شیٔ    او وایه دا سے څوک دے چه په لاس کښې يې وی اختیار دَ هر شی

دَ "تفویض اختیارات" عقیده دراصل دَ شیعه ګانو دَ یو ډلے عقیده ده. چه هغے ته کتابونو کښې "المفوضة" وائی. چنانچه شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله فرمائی.

المفوضة فهم القائلون ان الله فوض تدبیر الخلق الی الائمة[1]    په باطلو ډلو کښې یوه ډله "المفوضه" ده چه په دے قائل دی چه الله دَ مخلوق اختیارات اماما نو ته ورکړیدی

## کرامت اختیاری شے نه دے

په دے کښې شک نشته دے چه کرامت یعنی "ظهور دَ خرق عادت،، دَ اولیاؤ په لاس باندے ثابت دے. او دَ "اهل سنت والجماعة" په دے باندے اتفاق دے

[1] غنیة الطالبین مطبع رفیق عام لاهور ص۲۳۲

لیکن دَ دغ اهل سنت والجماعت فیصله دا هم ده- چه دا کرامت دَ ولی په اختیار کښ نه وی-

او دَ کرامت او دَ باقی افعالُ اختیاریوُ په مینځ کښ فرق هم دا دے- چه دا دَ بندَه مخلوق او مکسوب دواړه نه وی- بلکه دے صرف مظهر دَ دے وی- او باقی افعال دَ بندَه مخلوق خو نه وی لیکن مکسوب وی- ځکه چه دَ کسب تعریف په ”ارتکاب الاسباب“ یعنی استعمالول دَ اسبابو یا په ”صرف الارادة“ سره شوید ے- او واضحه ده چه کرامت خو خرق العادة یعنی دَ اسبابو عادیوُ نه خلاف دَ یو کار ظاهریدل وته وائی- نو دَ بندَه مکسوب او دَ زیر اختیار به څرنګے شی؟ موسیٰ علیه السلام ته هرکله چه الله تعالیٰ دَ عصا معجزه ورکړه او دَ دوی په مخکښ دَ لرګی نه اژدها جوړه شوه- نو دوی پریشانه شو- نو که چرے معجزه دَ پیغمبر فعل وے نو دوی پریشانه کیدل ولے؟ الله تعالیٰ فرمائی-

(۱) انما الآیات عند الله (انعام ع۱۳ پ۷) بے شک معجزات دَ الله په اختیار کښ دی- (یعنی دَ نبی فعل نه دے)

(۲) ملا علی القاری حنفیؒ المتوفی سنه ۱۰۱۴ه فرمائی-

وفی التحقیق المعجز فاعل العجز فی غیرہ وهو الله سبحانه.[1] حقیقت کښ ”معجز“ هغه دے چه په غیر کښ دَ عجز فعل ظاهر وی او هغه صرف الله تعالیٰ دے-

(۳) علامه ابن الهمام الحنفی المتوفی سنه ۶۸۱ه فرمائی-

انها انما کانت ما یعجز عنه الخلق لم تکن الا فعلا له سبحانه.[2] دَ معجزے نه هرکله چه مخلوق عاجزه وی- نو دا صرف دَ الله تعالیٰ فعل وی- (یعنی مکسوب دَ بندَه هم نه وی)

(۴) علامه قاضی عیاض المالکیؒ المتوفی سنه ۵۴۴ه فرمائی-

فعجزهم عنه هو فعل الله دل علی صدق نبیه- دَ معجزے نه دَ مخلوق عاجزه کیدل دَ دے خبرے دلیل دے چه دا دَ الله تعالیٰ فعل دے او دَ پیغمبر دَ صدق دلیل دے-

(۵) امام الفلاسفة والمناطقة حجة الاسلام امام غزالیؒ المتوفی سنه ۵۰۵ه فرمائی-

وجه دلالة المعجزة علی صدق الرسل ان کل ما عجز عنه البشر لم یکن الا فعلا لله تعالیٰ.[3] دَ معجزے دَ پیغمبر په صدق باندے دَ دلالت کولو وجه دا ده چه هر هغه شئ چه بندَه دَ هغے نه عاجزه وی نو هغه صرف دَ الله تعالیٰ فعل وی-

له مرقات هامش مشکوٰة ص۳۰ ج۲ ۲ه المسائره ص۱۳۱ مطبع محمودیه مصر ۳ه احیاء العلوم ص۹۷ ج۱

(۶) امام عبد الوهاب شعرانی رحمہ اللہ م ۹۷۳ھ د شیخ ابو طاهر القزوینی رحمہ اللہ د کتاب "سراج العقول" په حواله سره فرمائی۔

وهی فعل یخلقه الله خارقاً للعادة [۱]

معجزه د الله تعالیٰ داسې فعل دے چه په طور د خرق عادت ئے پیدا کوی

(۷) مشهور مؤرخ اسلام علامه عبد الرحمٰن بن خلدون رحمہ اللہ المغربی م ۸۰۸ھ فرمائی

ولیست من جنس مقدور العباد و انما تقع فی غیر محل قدرتهم [۲]

معجزات د بندګانو زیر قدرت نه دی بلکه داپه داسې محل کښې ظاهریږی چه هغه د دوی د قدرت نه خارج وی

(۸) شیخ عبد الحق محدث دهلوی رحمہ اللہ المتوفی سنہ ۱۰۵۲ھ فرمائی۔

معجزه فعل نبی نیست بلکه فعل خدائے تعالیٰ است که بر دست وے اظهار نموده۔ بخلاف افعال دیگر که کسب این از بنده است وخلق از خدا تعالیٰ ودر معجزه کسب نیز از بنده نیست [۳]

معجزه د پیغمبر فعل نه دے۔ بلکه د الله تعالیٰ فعل دے۔ چه په لاس د ده ئے ظاهروی۔ په خلاف د نورو افعالو نه چه کسب د هغے د بندګانه کیږی۔ او پیدا کول ئے د الله نه کیږی۔ او په معجزه کښې کسب د بنده هم نشته دے۔

(۹) نه فعل بنده است که صادر مے گردد بقصد و اختیار او مثل سائر افعال [۴]

معجزه فعل د نبی نه دے۔ چه په اراده او اختیار سره ئے صادروی۔ په مثال د نورو افعالو۔

د دے نقول نه او د آیت قرآنیه نه صاف طور سره معلومه شوه چه معجزات د پیغمبرانو په اختیار کښې نه وی۔ نو کرامت به څرنګے د اولیاؤ په اختیار کښې شی۔

(۱۰) د شاه عبد العزیز رحمہ اللہ مشهور شاګرد مولانا حیدر علی تونکی رحمہ اللہ په خپلو بعض تصنیفاتو کښې فرمائی۔

وما یزعم العوام ان الکرامة فعل الاولیاء انفسهم باطل بل هو فعل الله تعالیٰ یظهره علی ید الولی تکریماً له وتعظیماً لشانه ولیس للولی وللنبی فی صدوره اختیار اذ لا اختیار للعبد فی افعال الله تعالیٰ کما فی شرح العقائد العضدیة [۵]

دا خیال د بعض عوامو باطل دے۔ چه کرامت د ولی فعل دے۔ بلکه دا د الله تعالیٰ فعل دے۔ چه د ولی د تعظیم د پاره ئے هغه په لاس ئے ظاهروی۔ د ولی او د پیغمبر په دے کښې هیڅ اختیار نشته دے۔ ځکه چه د الله تعالیٰ په کارونو کښې د بندګانو هیڅ اختیار نه وی۔ لکه چه محقق دوانی په شرح عقائد عضدیه کښې وائی۔

---

[۱] الیواقیت والجواهر ص ۱۵۸ ج ۱ [۲] مقدمه ابن خلدون ص ۹۳ [۳] مدارج النبوة ص ۱۱۲ ج ۲ طبع نامی دهلی
[۴] ترجمه فتوح الغیب از شیخ عبد الحق رحمہ اللہ ص ۲۷ [۵] فتاوی رشیدیه ص ۱۴۳

نو هرکله چه کرامت اختیاري شئ نه دے. نو حضرت عمر رض څرنګه پشان د افعال اختیاریو حکم کوي. چه اے اوره دا د حضرت عمر رض خادر دے. یا اے زمکے او دریګه. کیږے داسے اختیار الله د ه ته ورکړے وے نو په زمانه د قحط کښ به دوئ د حضرت عباس رض دعا ته ولے رجوع کوله. بلکه حکم به ئے کړے وے چه اے بارانه او دریګه ځکه چه زه عادل بادشاه یم.

### مضمون روایت

لیکن کیږے دا واقعه ثابته شي. نو بیا هم د حافظ صاحب د مدعی اثبات نه کوي. ځکه چه په دے کښ نه خو د توسل بالذات ذکر دے. او نه د توسل بالمیت (نداء غیبي مرتي) ذکر دے. بلکه دوه خاص واقعه ده او کرامت د حضرت عمر رض دے.

### استدلال په قول د صاحب د بریقه او د شیخ عبد الحق رح

(۱۳) دیارلسم دلیل ئے دا دے. چه په شرح د طریقه محمدیه "بریقه" کښ دي چه توسل او استعانت په اموات صالحینو سره جائز دے. او شیخ عبد الحق رح هم دا جائز ګرځولی دي.

د داسے قسم عبارات صحیح جواب دا دے. چه نفس قول د یو عالم شرعي حجت نه دے. ترسو پورے چه دا عالم د خپل قول دلیل د ادلو د شرع نه بیان نکړي او د بیان سابق نه دا ثابته او واضحه شوے ده. چه په دے قسم توسل بالذات صحیح او ثابت شده دلیل نشته دے او نه دا قسم توسل د قرون ثلاثو معمول تیر شوے دے.

شیخ عبد الحق رح پخپله په شرح د مشکوٰة کښ اعتراف کړیدے. چه اکثر فقهاء کرام د استمداد بالقبور منکر دي. البته بعض فقهاء او صوفیاء کرام دے ته جائز وائي.

### اقوال د صوفیاء حجت نه دي

لیکن په شرعي مسائلو کښ نفس اقوال او معمولات د صوفیاء کرامو حجت نه دي ترڅو چه دلیل شرعي ورباندے موجود نه وي. حضرت مجدد الف ثاني رح فرمائي.

عمل صوفیه در حل و حرمت سند نیست — د صوفیاء کرامو عمل په حل او حرمت کښ سند نه دے

| | |
|---|---|
| ہمیں بس است کہ ما ایشاں را معذور داریم وملامت نہ کنیم و مر ایشاں را بحق سبحانہ مفوّض داریم۔ | هم دغه بس ده چه مونږ دوئ معذور اوګنړو او ملامت کوو ئے نه۔ او د دوئ معامله الله تعالیٰ ته اوسپارو۔ |
| ایں جا قول امام ابوحنیفہؒ وامام ابویوسفؒ وامام محمدؒ معتبر است نہ عمل ابوبکر شبلیؒ وابوحسن نوریؒ [1] | په دے باره کښې د امام ابوحنیفهؒ او د امام ابویوسفؒ او د امام محمدؒ قول معتبر دے نه د ابوبکر شبلیؒ او ابوحسن نوریؒ عمل سند نه دے۔ |

زه حیران یم چه یو طرف ته مونږ خوږ خپلے مدعا د پاره واضح اوصاف آیتونه او حدیثونه پیش کوو۔ او بل طرف ته خلق زمونږ په مقابله کښې یا خو صرف اقوال د علماء پیش کید ے شی او یا ضعیف او موضوع روایات وحکایات۔

نو د دے صورت حال فیصله زه منصف مزاج قارئینو ته پریږدم مرچه تله د انصاف خلق زمونږ په لاس کښې ده۔ او که د دوئ ؟ (وافوض امری الی الله)

| | |
|---|---|
| روایت اذا تحیرتم | (۱۴) خوارلسم دلیل ئے حدیث د "اذا تحیرتم فی الامور فاستعینوا من اهل القبور" دے۔ |

حافظ صاحب د خپل عادت جاریه مطابق دلته هم نه خو څه سند بیان کړے دے۔ او نه ئے د حدیث د یو کتاب حواله ورکړے ده۔ او نه ئے دا وضاحت کړے دے۔ چه دا حدیث مرفوع یعنی قول د رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او که حدیث موقوف یعنی قول د صحابی دے۔

دراصل دا د عبد الله بن مسعود رضا او د سفیان ثوریؒ یو قول دے چه بیا بعض غیر معتبرو کښې دوئ ته منسوب شوے دے۔ شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ فرمائی۔

کتابونو

| | |
|---|---|
| هو کلام موضوع مکذوب باتفاق العلماء [2] | دا یو موضوع او دروغژن قول دے په اتفاق د علماء سره۔ |

او شاه ولی الله محدث دهلوی فرمائی۔

| | |
|---|---|
| ایں حدیث قول مجاوران است برائے اخذ نذر ونیاز بر مصطفے صلعم افتراء کرده اند [3] | دا د منجورانو یو قول دے۔ چه د نذرونیاز اوشکرانو د پاره ئے په حضورؐ باندے تړلے دے۔ |

[1] مکتوبات دفتر اول ص ۳۳۵ مکتوب ص ۲۶۶ و مثله فی ترجمة مجالس الابرار ص ۱۳۰ [2] اقتضاء الصراط المستقیم ص ۵۸۵ [3] البلاغ المبین ص ۵۳ ۱۲

او کچرے بالفرض صحیح شی نو دَ دے مطلب توسل او استمداد دَ مرو له نه دے۔ بلکہ هغه دے کوم چه شاه عبد العزیزؒ په فتاوی عزیزی کښ بیان کړے دے۔

(۱) "داچه هر کله ستا سو دَ یو شیز دَ حلال یا حرام جائز یا ناجائز کیدو کښ شبه او شک پیدا شی نو دَ اهل قبور یعنی دَ مړو علماء (صحابه او ائمه مجتهدین) دَ تحقیقاتو نه امداد او غواړئ او دَ دوئ دَ اقوالو په روښنائی کښ دَ خپلے شبهے ازاله او کړئ۔

(۲) یا داچه هر کله تاسو ته دَ دنیوی مشکلاتو او مصائبو په وجه پریشانی لاحق شی نو دَ ځان نه مخکښی مړی را یاد کړئ نو دنیوی مصیبتونه به درته دَ قیامت دَ تصور په وجه هیر شی او یو قسم اطمینان به درته حاصل شی[۱]

حقیقت دا دے۔ چه یو سړے کوم وخت په دریاب کښ غرقیږی او مضبوط وسیله و رسره نه وی نو دے کمزورو کمزورو ډکو ته هم لاس اچوی حالانکه دا یکی دے دَ غرقیدو نه نه شی خلاصولے۔

دَ توسل بالذات او استمداد غیبی دَ پاره چونکه دَ شریعت ثابت شده دلائل نو شته دے نه۔ دَ دے وجه نه دا حضرات موضوعی او غلطو روایاتو باندے استدلال کوی او معنی و رله هم غلطه ور کوی۔ فیا للعجب ویا للاسف۔

روایت یا سیّدی احمد بن علوان

(۱۵) پنځلسم دلیل ئے دا دے چه په شامی کښ دی چه دَ یو سړی نه ښاروے ورک شی نو دوه رکعته مونځ دِ او کړی۔ او بیا دِ او وائی۔ چه اے احمد بن علوان کچرے تا خاورک شوے ښاروے واپس نه کړه نو زه به دِ دَ اولیاءُ دَ دفتر نه او باسم رونړو! تاسو دا عبارت بار بار او لولئ او بیا سوچ او کړئ چه دَ محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دین هم دا دے۔ چه یو مصیبت زده او حاجتمند انسان دَ یو بزرگ نه غیبی طور باندے امداد هم غواړی او بیا ورته چیلنج، او دهمکی هم ور کوی چه زه به تا دَ دفتر دَ اولیاءُ نه او باسم۔ ے

برین عقل و دانش بباید گریست ؛

[۱] فتاوی عزیزی ص۱۳۶ ۱۲

حقیقت خود دادے۔ چہ حمونږ حنفی فقہ چہ یو بہترینہ فقہ دہ۔ او ټول فقہاء دراصل ھم دَدے فقہ دَ بانی امام اعظم ابوحنیفہ رح خوشہ چینان دی۔ (الخلق عیال ابی حنیفۃ فی الفقہ) نن صبا دَدے قسم خبرو بد نام کړہ۔ نو دَ داسے قسم عبارت جواب ھم دادے چہ جواب ئے او نہ کړے شی۔

دَ توسل دَ بحث پہ آخر کښې حافظ موصوف دَ روح البیان پہ حوالہ وائی چہ شفاعت او توسل یو شئ دے۔ او منکر دَ توسل پښان دَ شیطان دَ دے متعلق عرض دادے۔ چہ توسل او شفاعت یو شئ نہ دے۔ بلکہ دَ توسل پہ اقسامو کښې یو قسم استشفاع دے۔ یعنی دَ ژوندی انسان نہ طلب دَ سفارش او دَ دعا کول۔ نو کچرے دَ روح البیان مطلب دا وی۔ نو بالکل صحیح دہ۔

زہ مناسب گنړم چہ دَ دے بحث اختتام دَ علامہ ابن قیم رح پہ ھغہ اشعارو متبرکو سرہ او کړم چہ دَ دے بحث سرہ ئے بہترین تعلق دے۔

---

| | |
|---|---|
| کلا ولم تغل الغلوّ کما نھی | عنہ الرسول مخافۃ الکفران |
| للہ حق لا یکون لغیرہ | ولعبدہ حق ھما حقان |
| لا تجعلوا الحقین حقا واحدا | من غیر تمییز ولا فرقان |
| فالحج للرحمن دون رسولہ | وکذا الصلوٰۃ وذبح ذی القربان |
| وکذا السجود ونذرنا ویمیننا | وکذا متاب العبد من عصیان |
| وکذا التوکل والانابۃ والتقیٰ | وکذا الرجاء وخشیۃ الرحمان |
| وکذا العبادۃ واستعانتنا بہ | ایاک نعبد ذان توحیدان |
| وعلیھا قام الوجود باسرہ | دنیا واخریٰ حبذا الرکبان |
| وکذلک التسبیح والتکبیر والتھ | لیل حق الٰھنا الدیان |
| لکنما التعزیز والتوقیر حق | للرسول بمقتضی القرآن [1] |

(فتلک عشرۃ کاملۃ ولتوحید اللہ جامعۃ۔ گوہر)

[1] الکافیۃ الشافیۃ فی الانتصار للفرقۃ الناجیۃ معروف بقصیدۃ نونیہ ص۱۹۱ و ۱۹۲ ھندی ۱۲

### د اتم صدۍ (۸۰۰ سنه) د مشهور عالم مُصلح او مجدّد

# شیخ الاسلام ابن تیمیّہؒ

## مختصر حالات

لما اتانا تقی الدین لاح لنا ـ داعٍ الی الله فرد ماله وزر
یا من یحدث عن علم الکتاب استمع ـ هذا الامام الذی قد کان ینتظر
(ابو حیان اندلسیؒ)

د الله تعالیٰ د حکمت بالغه تقاضی داده. چه د حق په مقابله کښې باطل او د حق پرستو په مقابله کښې باطل پرست د خلکو په مقابله کښې تراخه د هر وخت موجود دوی. او هم دا وجه ده. چه د هرے زمانې په مصلحینو او مجددینو باندې د جانب مخالف نه څه نه څه الزامات لګولی شوی دی. او هم دغه غلط الزامات پشت په پشت روستو خلقو کښې خوارہ شوی دی.

د اتمے صدۍ مشهور مجدد د مصلح حضرت شیخ الاسلام احمد تقی الدین ابن تیمیه الحرانیؒ هم ددے الزاماتو نه بچ شوے نه دے. چا ورباندې د تجسیم تهمت لګولے دے. او چا د منکر شفاعت و کرامت او چا ورته "متشدد" ویلی دی. حالانکه انصاف دا دے. چه دے مرد مؤمن پروانه توحید و سُنّت په خپل دور رفتن کښې چه کوم جهاد کړے دے څما په خیال کښې کم از کم په دغه دور کښې دا سے جهاد کوم بل چا نه وو.

چونکه ما د توسل د مسئلے په وضاحت کښې ځاې په ځاې د دوی د عباراتو حواله ورکړے ده. او حافظ کفایت الله صاحب او د ده د نقطه نظر ډیر حضرات دے قابل اعتماد عالِم نه ګڼړی. بلکه حافظ صاحب خوده ته د "وهابیانو" رئیس ویلی دی. او ننن زمانه کښې "وهابیت" نه لوئ کنړل بل نشته دے. د دے وجوهاتو په بناء باندې زه ضروری ګڼړم. چه په آخر کښې مختصر طور باندې د ابن تیمیه رح حالات بیان کړم چه قارئینو ته واضح شي چه دے "وهابی" نه وه. بلکه د اهل سنت والجماعة د مذهب بهترین ترجمان او مُبلِغ وه.

### د شیخ الاسلام ولادت او نقل سکونت

شیخ الاسلام تقی الدین احمد بن عبد الحلیم ابن تیمیه رح په ۱۰ ربیع الاول ۶۶۱ھ باندې پیدا شوے وه. والد بزرګوار د ده نوم احمد تقی الدین ایخے وه. او چه لوئ شه نو ځان د پاره ئے ابو العباس اسم کنیه مقرر کړه. لیکن عام طور سره دوئ خپل خاندانی نوم "ابن تیمیه" باندې یادیږی.
په دغه زمانه کښې چونکه د تاتاریانو د ظلم او خصوصا د علماء د قتل هر ځاے کښې خطره وه. او عراق باندې دوئ قبضه کړے وه. صرف شام د دوئ د قبضے نه باهر وه. او په دے ملک باندې د مصر د خاندان غلامان سلطنت وه. د دے وجه نه د ابن تیمیه رح خاندان هر څه پریخودل. او صرف قیمتی کتابونه ئے د ځان سره واغستل. او شام (دمشق) ته ئے د هجرت سفر شروع کړه. په دے وخت کښې د شیخ الاسلام

عمر ۱۰ ته شو کاله وه.

دمشق ته د رسیدو سره د دے علمی خاندان بهترین استقبال اوشو. او یو څو ورځے پس د شیخ الاسلام والد بزرګوار عبد الحلیم ابن تیمیه رح په جامع اموی او دار الحدیث کښې خپل درس شروع کړ. او عام طلباء و علماء او خصوصاً حنبلی طلباء او علماء د پتنګانو په شان د دوی نه چاپیره شو او دوی په دے ملک کښې اجنبیت او د وطن سره محسوس نه کړه.

شیخ الاسلام د کم عمرئ په زمانه کښې قرآن کریم د قولو نه اول یاد کړ. او بیا د خپل والد په تربیت کښې د حدیث او د عربیت په حاصلولو کښې مشغول شه.

## د شیخ الاسلام آبائی وطن

د دجلے او د فرات دواړو په دوو حصو کښې تقسیم ده. یو جنوبی حصه چه دے ته عراق عربی وائی په دے علاقه کښې بغداد، بصره وغیره ښارونه واقع دی. او دویم شمالی حصه ده. دے ته په قدیم عربی کتابونو کښې "دیار بکر"، "دیار ربیعه" او "دیار مضر" ویلے شی. او عرب جغرافیه نویسان عام طور دے ته "الجزیره" وائی. د دے په شمالی سمت باندے "آرمینیا" جنوبی سمت کښې "عراق عربی" مشرقی جانب کښې "کردستان" او مغرب کښې "ایشیائے کوچک"، "بادیة الشام (صحرائے شام)" واقع دی. هم په دغه مغربی علاقه کښې "موصل" "الرقه" "نصیبین" او "الرها" (ایډیسا) نوم دے ته او دغه وائی. او دا په سلطنت ترکیه کښې شامل (سیمه) واقع دی. د دے "الرها" نه په جنوبی سمت کښې تقریباً د اتو گهنټو په مسافت باندے یو تاریخی ښار "حَرّان" واقع دے. او هم دغه ښار د شیخ الاسلام آبائی او خاندانی وطن دے.

## د شیخ الاسلام رح خاندان

د شیخ الاسلام خاندان د حَرّان مشهور علمی او دینی خاندان تیر شوے دے. او د حنبلی مسلک درس او افتاء وغیره دینی مناصب همیشه هم د دے خاندان حصه پاتے شوے ده.

د شیخ الاسلام نیکه ابو البرکات مجد الدین ابن تیمیه رح شمار د حنبلی مسلک په اکابرو کښې شوے بعض اهل علم ده ته د مجتهد مطلق لقب هم ورکړے دے[۱] دوی ابتدائی تعلیم د خپل تره مشهور خطیب و واعظ فخر الدین ابن تیمیه رح نه حاصل کړے وه. او بیا د حران. بغداد وغیره علماء. محدثینو او فقهاء نه ده د مختلفو علوم تحصیل و تکمیل کړے وه. او خصوصاً په فقه کښې ده ډیره مهارت او کمال حاصل کړے وه. چه علامه ذهبی رح فرمائی.

وانتهت الیه الامامة فی الفقه. چه په فقه کښې د ده درجه د امام او د پیشوا وه.

علامه ذهبی رح په کتاب النبلاء کښې لیکی. چه د دوی ولادت په سنه ۵۹۰ھ کښې شوے دے. او په سنه ۶۵۲ء کښې ئے وفات شوے دے. د دوی مشهور تصنیف "منتقی الاخبار" دے. چه علماء په هره زمانه کښې د دے نه فائده حاصله کړیده. او شرحے ئے ورباندے کړی دی. په آخری دور کښې د یمن یو مجتهد او

[۱] ترجمه صاحب منتقی الاخبار بقلم علامه شوکانی رح بحواله تاریخ دعوت و عزیمت از ابو الحسن علی ندوی ص ۲۳ ج ۲.

مایہ ناز محدث علامہ محمد بن علی الشوکانی الحنبلیؒ المتوفی سنہ ۱۲۵۵ھ پہ اتو جلدونو کښ د نیل الاوطار پہ نوم باندے د دے کتاب یوه بهترینه شرحه لیکلے ده۔

د شیخ الاسلام والد بزرگوار شهاب الدین عبد الحلیم ابن تیمیہؒ هم د خپلے زمانے مشهور عالِم۔ محدث۔ حنبلی فقیه او صاحب درس و افتاء وه۔ دمشق ته د نقل مکانی نه بعد دے د "جامع اموی دمشق" خطیب و واعظ او د "دار الحدیث السکریه" شیخ الحدیث مقرر شوے وه۔ او هم دے دمشق کښ په سنه ۶۸۲ھ کښ د دوئ وفات اوشو۔ او په مقابر الصوفیه کښ دفن کړے شو[1]

## د شیخ الاسلامؒ تعلیم و تکمیل

ابن تیمیہؒ د کتاب و سنت د ترجمانے او د دین د صداقت او د برترئ د ثابتولو د پاره په خپله زمانه کښ مکمل تیارے کړے وه۔ او د دغه دور د تمامو علوم و فنون نه نه صرف واقفیت حاصل کړے وه بلکه په هغے کښ ئے مجتهدانه بصیرت او نقادانه مهارت هم حاصل کړے وه۔

ابتداء کښ د دوئ زیاته توجه صرف او نحوے ته وه۔ د امام سیبویهؒ د "الکتاب" مطالعه ئے بار بار په ښه غور و فکر سره کړے وه۔ او د دے کتاب په کمزورو او غلطو باندے ئے علمی تنقید او گرفت هم کړے وه۔ په عربیت کښ د دوئ دا مهارت او دلچسپی آینده د پاره د دوئ په علمی کارنامو او تصنیفاتو کښ ډیر زیات مفید او مؤثر ثابت شوے وه۔ د قدیم جاهلی ادب د منظوم او د منثور کلام کافی حصه دوئ ته زبانی یاده وه۔ او هم دا رنگے د قدیم عرب تاریخ او د اسلامی عهد خلافت او د سلطنت واقعاتو او حالاتو په یادولو کښ دوئ ته د بصیرت مرتبه حاصله وه۔

او علوم دینیه۔ فقه۔ میراث۔ اصول فقه۔ حدیث۔ تفسیر کښ خو د دوئ مرتبه زما په خیال کښ یقیناً مجتهدانه مرتبه وه۔ خالص مقلدانه مرتبه بالکل نه وه۔

په حدیث کښ د تولو نه اول دوئ د امام حمیدیؒ "الجمع بین الصحیحین" زبانی یاد کړے وه۔ او بیا ئے د شام د علماء حدیث نه د احادیثو سماعت او کتابت شروع کړے وه۔

ابن عبد الهادیؒ فرمائی چه د ابن تیمیہؒ د شیوخ حدیث تعداد د دوه سوو نه متجاوز وو۔ د مسند احمد بن حنبلؒ او د صحاح ستو یو ځل نه بلکه بار بار باقاعده کتے سره د استاذانو نه سماعت کړے وه۔[3]

لیکن تفسیر د شیخ الاسلام محبوب او مرغوب موضوع وه۔ چنانچه فرمائی چه د تفسیر القرآن په سلسله کښ ما د سلو نه زیات کتابونه بالاستیعاب مطالعه کړی دی۔[4]

د تدبر قرآن د طریقے متعلق دوئ په خپله فرمائی۔

ربما طالعت على الآية الواحدة نحو مائة تفسير ثم اسئل الله الفهم واقول يا معلم آدم وابراهيم علمني وكنت اذهب الى المساجد المهجورة

ډیر ځله ما د یو آیت د پاره د سلو سلو تفسیرونه مطالعه کړیدی او بیا به مې د الله نه د فهم دعا کوله او وے به م چه اے معلمه د آدمؑ او ابراهیمؑ ما په د

له البدایه والنهایه ص۳۰۳ ج۱۳ ؛ ۲ه الکواکب الدریه ص۳ ؛ ۳ه ایضا ص۴ ؛ ۴ه تفسیر سورة نور از ابن تیمیهؒ ص۳۶

ونحوها وامرغ وجهي في التراب واسئل الله تعالى واقول يا معلم ابراهيم فهمني[1]

آیت پوهه کړه. اوزه به غیرآباد وچاتو نور مقاماتو ته لاړم او سر به مې په خاورو کښې اومکړ اووے به مې چه اے دَ ابراهیمؑ معلمه ما ته پوهه راکړه

## دَ شیخ الاسلامؒ علمي تبحُّر

خلاصه داده چه شیخ الاسلامؒ تمامو علومو کښې تر دے حده پورے مهارت اوکمال حاصل کړے وه. چه لکه څرګنګه دَ نمر نه هیڅوک انکار نشي کولے. هم دغه رنګه دَ دوئ دَ علمي قابلیت نه هیڅوک انکار نشه کولے. حتی چه دَ دوئ مشهور حریف او مقابل علامه کمال الدین الزملکانیؒ هم دَ دوئ دَ علمي جامعیت او دَ همه ګیرئ په دے الفاظو سره کولو باندې مجبور شه. چه

(۱) وقد الان الله له العلوم كما الان الله لداؤدؑ الحديد. كان اذا سئل عن فن من العلم ظن الرائي والسامع انه لا يعرف غير ذلك الفن وحكم ان احدا لا يعرفه مثله وكان الفقهاء من سائر الطوائف اذا جلسوا معه استفادوا في مذاهبهم مالم يكونوا عرفوه قبل ذلك ولا يعرف انه ناظر احدا فانقطع معه ولا تكلم في علم من العلوم سواء كان من علوم الشرع او غيرها الا فاق فيه اهله والمنسوبين اليه وكانت له اليد الطولى في حسن التصنيف.[2]

دَ ابن تیمیهؒ دَ پاره الله تعالیٰ علوم داسے نرم او آسان کړی وُو لکه دَ داؤدؑ دَ پاره ئے اوسپنه نرم کړے وه. دَ ده نه به چه چا په هر یو فن کښې تپوس اوکړ نو داسے جواب به ئے ورکوو چه لیدونکی او اوریدونکی به دا خیال کوو چه دے بغیر دَ دے فن نه په بل فن نه پوهیږی. او فیصله به ئے اوکړه چه دَ ده په شان بل هیڅوک په دے فن نه پوهیږی. او دَ نورو مذهبونو فقهاؤ به دَ ده په مجلس کښې دَ خپلو مذهبونو داسے خبرے زده کړے چه مخکښې به ورته نوے معلومے. دا چرته نه دی شوی چه دے دَ چا سره په مناظره کښې بند شوے دے. دوئ چه دَ شرعي او عقلي علومو کښې په یو کښې چه کلام کړے دے نو دَ دے علم ماهرین ئے نه وچت شوی دی. دوئ ته په فن دَ تصنیف کښې لوئ مهارت وه.

علامه تقي الدين ابن دقیق العیدؒ په خپل زمانه کښې دَ لوئ پائے امام او محدث تیر شوی دے. او دَ دغه دور علماء بالعموم دے خپل استاد او بزرګ امام ګنړی. لیکن په سنه ۷۰۰ھ کښې چه شیخ الاسلام مصر ته لاړ او دَ ابن دقیق العیدؒ سره ئے ملاقات اوشو نو علامه موصوف دَ خپل ملاقات تاثر په دے الفاظو سره بیانوی.

(۲) لما اجتمعت بابن تيميةؒ رأيت رجلا العلوم كلها بين عينيه يأخذ منها ما يريد ويدع ما يريد[3]

دَ ابن تیمیهؒ سره چه ما ملاقات اوشو نو ما داسے محسوس کړه چه لکه ټول علوم دَ دے سړی دَ سترګو په مخکښې پراته وی. چه څه غواړی نو را اخلی او چه څه نه غواړی نو ئے پریږدی.

علامه تقي السبکي م سنه ۷۵۶ھ دَ شیخ الاسلام مشهور حریف او مقابل تیر شوی دے او دَ

[1] العقود الدرية ص۲۶ [2] ص۵۲ الكواكب الدرية ص۱۵۰ [3] الرد الوافر ص۳۱ و ۱۲

شدِ رحال وغیره مسئلو کښې ئې دَ دوئ تردید لیکلے دے. لیکن سره دَ دے نه حافظ ذهبیؒ ته په یو خاکښې لیکي.

(۳) المملوک یتحقق کبیر قدره وذخارة بحره وتوسعه فی العلوم الشرعیة و العقلیة وفرط ذکائه واجتهاده وبلوغه فی کل ذلک المبلغ الذی لا یتجاوزه الوصف والمملوک یقول ذلک دائماً[1]

دے فقیر ته دا اندازه لګیدلے ده چه ابن تیمیهؒ یو جلیل القدر عالم بحرذخار او علوم شرعیو او عقلیو دوارو کښې متبحر دے. او ما ته دَ دوئ اعلیٰ ذهانت او ذکاوت او دَ اجتهاد اندازه هم لګیدلے ده. او دے دا سے مرتبے ته رسیدلے دے چه تعریف ئې مشکل دے او زه دا همیشه وایم.

حافظ صاحب دَ علامه السبکیؒ دَ شدِ رحال او دَ توسل بالذات والحرمت په مسئلو کښې دَ امام ابن تیمیهؒ سره اختلاف خو نقل کړیدے. لیکن دَ علامه موصوف دے مذکوره تبصرے ته ئې خیال نه دے کړے.

حقیقت دا دے چه څومره اسلافو به یو بل سره اختلاف هم کولو لیکن دَ یو بل توهین به ئې نه کولو بلکه دَ خپل حریف دَ کمالاتو اعتراف به ئې کولو. (اللّٰهم اهدِنا لما هدیتهم آمین)

(۴) دَ شیخ الاسلام یو معاصر شیخ صالح تاج الدینؒ فرمائي چه یو ځل یو یهودي په اتو شعرونو کښې دَ تقدیر متعلق یو سوال راوړیده نو حضرت شیخ یو ساعت سوچ و فکر اوکه. او بیا ئې جواب لیکل شروع کړه. څومره خیال دا وو چه په نثر کښې به جواب لیکي. لیکن دَ فراغت نه بعد چه کاغذ اوکتے شه نو څومره زد میرا نیا شعر حد پاتے نه شه. ځکه چه حضرت شیخ هم په هغه قافیه او ردیف باندې یو سل څلور اتیا[183] اشعار کښې دَ دے سوال صحیح او تحقیقي جواب لیکلے وه. او په دے کښې دومره علوم رحکم راغونډ شوي وو چه که ئې شرح کولے نو تقریباً په دوو ضخیمو جلدونو کښې به راغلے وه.[2]

(۵) علامه علم الدین البرزالیؒ فرمائي.

قل ان سمع شیئاً الا حفظه وکان ذکیاً کثیر المحفوظ[3]

داسے موقع ډیره کمه پیښه شویده چه دوئ یوه خبره آوریدلې وي. او دے انتهائي سریع الفهم وه. او یادواشت ئې ډیر زیات وه.

(۶) علامه حافظ شمس الدین الذهبیؒ فرمائي.

لو حلفت بین الرکن والمقام لحلفت انی ما رایت بعینی مثله ولا والله رأی هو مثل نفسه فی العلم[4]

که ما ته څوک دَ مقام ابراهیم او دَ رکن په مینځ کښې قسم راکی نو زه به پدے خبره قسم اوکړم چه په علم کښې ابن تیمیهؒ مثل نه ما لیدلے دے. او نه هغه پخپله خپل مثل لیدلے دے

یصدق علیه ان یقال کل حدیث لا یعرفه ابن تیمیةؒ فهو لیس بحدیث[5]

دَ دوئ متعلق به دا ویل بالکل صحیح وي چه کوم حدیث ابن تیمیهؒ ته معلوم نه وي هغه به دَ سره حدیث نه وي.

[1] "طبقات الشافعیة الکبریٰ" تاج الدین السبکیؒ بحث ترجمه علامه تقی الدین السُبکی بحواله تاریخ دعوة ص۱۳۵ ج ۲؛ [2] الکواکب الدریه ص۱۵۲؛ [3] الرد الوافر ص۶۶؛ [4] تاریخ دعوة ص۱۲۷ ج ۲؛ [5] الکواکب ص۱۳۵

(۷) شیخ سراج الدین ابوحفص البزارؒ فرمائی۔

وکان قد اختلط بلحمہ ودمہ وسائرہ فانہ لم یکن مستعارًا بل کان لہ شعارًا ودثارًا [۱]

دا سے معلومیدہ لکہ چہ علم دده په رګ و ریشہ کښ سرایت کړے دے۔ او غوښہ او سرمن ئے جوړ شوے دے۔ علم ددوی دپاره څه عارضی شئ نه وه۔ بلکه دده آغوستن کرچین لے وه۔

(۸) ملا علی القاری الحنفیؒ دشیخ الاسلام ابن تیمیہؒ او دعلامہ حافظ ابن القیمؒ متعلق فرمائی

کانا من اکابر اهل السنة والجماعة ومن اولیاء هذه الامة [۲]

حافظ ابن تیمیہؒ او حافظ ابن القیمؒ دواړه د "اهل سنت والجماعۃ" د اکابر و او دے امت د اولیاء کرامو نه وو

(نوټ) حافظ صاحب شیخ الاسلام ته د "وهابیانو" رئیس وائی او ملا علی قاری ورته د اهل سنت امام او دامت محمدیہ ولی الله وائی۔ نو قارئین د فیصله اوکی چه مونږ د حافظ "موصوف" خبره او منو او که د حنفی فقیہ عالم محقق ملا علی قاری خبره او منو۔

## دشیخ الاسلام شجاعت ایمانی

دابن تیمیہؒ شجاعت او بے خوفی او د حق په اظهار کښ د مخالفتونو پروا نه ساتل د ضرب المثل حیثیت لری۔ د تاتاریانو خلاف علمی جهاد کښ دوئ چه کومے کارنامے کړی دی۔ د هغے په بنا باندی ترک سرداران و باندی هم ددوی د بهادرئ سکہ ناسته وه۔

حافظ سراج الدین ددوئ د شجاعت په دے الفاظو سره اعتراف او اظهار کوی۔

وکان اذا رکب الخیل یجول فی العدو کاعظم الشجعان ویقوم کاثبت الفرسان وینکی العدو من کثرة الفتک بهم و یخوض بهم خوض رجل لا یخاف الموت [۳]

ابن تیمیہؒ به چه کله په آس باندی سور شه نو د دشمن په صفونو کښ به د لوئ نه لوئ بهادر پشان زغلیدو۔ او د بهترین شهسوار په شان به ثابت قدم وه۔ او دشمن به ئے په خپله حمله باندی ذلیل کړ۔ او په دشمن به داسے ورته چه لکه دده دپاره اودو مرګ نه وی۔

شیخ الاسلام دعلمی او دتبلیغی شجاعت په مرتبہ عالیہ باندی فائز وه۔ کومه خبره به چه دوئ ته از روئ دلائل صحیح او حقه معلومه شوه۔ نو د هر قسم خطرات او د مخالفتونو باوجود به دوئ چا د هغے خبرے د اظهار او د اشاعت نه نشو منع کولے۔

د توحید خالص وضاحت۔ د استغاثه و استعانت بغیر الله تردید۔ د بدعاتو او منکراتو د زمانے لفظ د "وحدة الوجود" او د "اتحاد وحلول" خلاف قلمی او لسانی جهاد۔ د مبتدعین او د تصوف د مدعیانو د تلبیسانو او فریب کارو پرده دری۔ د کلامی۔ فقهی مباحثو متعلق د خپلو تحقیقاتو مدلل طریقه باندی بیانولو وغیره کارونو کښ دوئ چه د کوم شجاعت اظهار کړے وه۔ هغه صرف شجاعت نه دے بلکه امامت او عظمت د شجاعت دے۔

---

[۱] الکواکب ص۱۵۶ [۲] جمع الوسائل ص۲۰۸ ج۱ طبع مصر و مرقات شرح مشکوٰۃ [۳] الکواکب ص۱۶۱

علامہ ذهبی رح فرمائی۔

اطلق عبارات احجم عنها الاولون والآخرون وهابوا وجسر هو عليها حتى قام عليه خلقٌ من علماء مصر والشام قياماً لامزيد عليه وبدّعوه وناظروه وكاتبوه وهو ثابتٌ لا يداهنُ ولا يحابي بل يقول الحقّ المرّ الذي اداه اليه اجتهاده وحدّة ذهنه وسعة دائرته في السنن والاقوال مع ما اشتهر من الورع وكمال الفكر وسرعة الادراك والخوف من الله العظيم والتعظيم لحرمات الله فجرى بينه وبينهم حملاتٌ حربيّة ووقعاتٌ شاميّةٌ ومصريّةٌ وكم من نوبة رموه عن قوسٍ واحدةٍ فينجيه الله [1]

دوی دخپل مفهوم د پاره داسے تعبیرات استعمال کړل چہ د دے جرأت متقدمینُ او متأخرینُ ته نه وه نصیب شوے تر دے چہ د مصر او د شام د علماءُ یو پوره ډله د دوئ مخالفه شوه۔ او دوئ په دے مخالفت کښ انتهاء ته اورسیدل۔ بدعتی ئے ورته اووے۔ مناظرے ئے ورسره اوکړے۔ خطونه ئے ورته اولیکل۔ لیکن دا مردِ مؤمن د دے طوفانونو په مینځ کښ بخپله حقه خبره کلک ولاړ وه۔ نه ئے د چا رعایت کړے وه او نه ئے څه پټ کړے وه۔ بلکه هم هغه ترخه او حقه خبره به ئے کوله چه د خپل اجتهاد۔ ذکاوت۔ په سننُ او اقوالُ باندے د وسعت نظر په بنا به ورته حقه معلومیده۔ د دے سره زهد وتقوی بالغ نظری خوف خدای د احکامُ الٰهیو ادب وتعظیم هم د دوئ شامل حال وو۔ د مخالفینُ سره ئے لوئے لوئے معرکے او د شام او د مصر مختلف مقابلے او مناظرے اوکړے۔ او ډیر کرته ټول خلق به یو طرفته وو او دے به یل طرفته یواځے ولاړ لیکن بیا هم د هغوئ د شر نه الله بچ ساتلے وه۔

## د شیخ الاسلام فکری استقلال رح

د ابن تیمیہ رح اصلی امتیاز تبحر علمی او وسعت معلومات نه وه۔ بلکه په هر فن کښ د دوئ فکری استقلال ذوقِ تحقیق مجتهدانه طرز وه۔

نحو هر چا لوستے وه۔ او د سیبویه نه هر څوک واقف وو۔ لیکن دوئ په دے فن کښ یو مجتهدانه او ناقدانه بصیرت حاصل کړے وه۔ ابو حیان نحوی اندلسی رح چه یو ځل د دوئ په مخکښ د سیبویه حوالہ ورکړه۔ نو دوئ او فرمایل چه دے څه د نحو پیغمبر خو نه دے۔ بلکه ده په "الکتاب" کښ تقریباً اتیا مقاماتو باندے غلطی کړے ده۔

د یونانی منطق او فلسفے نه په دغه زمانه کښ عام طور سره علماء او فقهاء واقف وو۔ او تنقید ونه ئے ور باندے هم کړی وو۔ خو د دے اثر تقریباً په هر یو عالم باندے وه۔ حتیٰ چه د دے فلسفے مشهور ناقد حجة الاسلام امام غزالی رح هم خپل تصنیفات حتیٰ چه احیاء العلوم غوندے خالص صوفیانه او واعظانه کتاب هم د یونانی الٰهیاتو او د فلسفه اخلاق نه کلی طور باندے محفوظ او نه ساتلے شو۔ لیکن امام ابن تیمیہ رح د دے فلسفے خلاف علَم بغاوت بلند کړو۔ او کتاب الرد علی المنطقیین پشان کتابونو کښ ئے د دوئ مقدماتُ او مسلم الثبوت مسائلُ باندے ئے ناقدانه بحث اوکړو۔ او داسے اعتراضونه ئے ور باندے اوکړل چه چا ئے جواب نشو کولے۔

[1] الرد الوافر صـ ۱۲

په دے دور کښ د فقہ او د حدیث په مسائل او اصول کښ د بحث ونظر دروازه تقریباً عملاً بنده شوے وه۔ لیکن حضرت شیخ په دے باره کښ د خپل ذوق تحقیق ثبوت ورکړ۔ او د هر مسئلے د دلائل علمی او مجتهدانه جائزه ئے واخسته۔ حنبلی فقه خو د دوئ خاندانی فقه وه۔ او په دے کښ د دوئ غیر معمولی تربیت د خپل پلار په درس کښ شوے وه۔ او عام طور سره دوئ هم د دغے مسلک مطابق عمل او فتوی ورکوله۔ لیکن په دے باره کښ دوئ د تعصب او د جمود ښکار نه وو۔ بلکه د دلائل د قوت په بناء به دوئ د نورو مذاهب مطابق هم عمل کوو۔ او اگر که حتی الامکان ئے د مذاهب اربعو نه خروج نه دے کړے۔ لیکن په یو څو مسئلو (مثلاً طلقات ثلثه۔ مسئله تعلیق طلاق۔ وغیره) کښ د خپل علمی او استدلالی تحقیق مطابق تفرد هم اختیار کړے دے۔ لکه چه شیخ الاسلام امام ولی الله الدهلوی حنفی عالم وه۔ او عام طور سره د دوئ رویه د حنفیت مطابق تیره شویده۔ لیکن باوجود د دے په ډیرو مسئلو کښ دوئ په نورو مسلکو نو بانڼ هم فتوی ورکړیده۔ هم دغه طریقه د شیخ الاسلام وه۔ په آخری دور کښ حضرت شیخ استقلالاً مرف د کتاب وسنت او آثار صحابه په روښنائی کښ فتوی ورکوله۔ علامه ذهبی رح فرمائی۔

من عدة سنین لایفتی بمذهب معین بل بما قام الدلیل علیه ولقد نصر السنة المحضة والطریقة السلفیة ببراهین و مقدمات وامور لم یسبق الیها۔[1]

د ډیرو کلونو نه حضرت شیخ د مذاهب اربعو نه په خاص مذهب بانڼ فتوی نه ورکوی۔ بلکه هم هغه فتوی ورکوی چه دوئ ته ئے دلیل معلوم وی۔ دوئ د سنت خالصه او د طریقه سلف (قرون ثلاثه) د تائید ونصرت د پاره داسے دلائل ومقدمات او وجوه قائم کړیدی چه د دے نه قبل داسے کار چا نه دے کړے۔ اھ

## د شیخ الاسلام اخلاص

د حضرت شیخ د ژوند یو خصوصیت دا وه۔ چه د دوئ ژوند د علم دین د خدمت د پاره وقف وه۔ او دا کار ئے خالصاً لوجه الله کوو۔ په ټول عمر کښ نه ئے د بادشاهانو وظائف او مناصب قبول کړی دی۔ او نه ئے د عوامو نه د مال جمع کولو د پاره څه خانقاهی نظام قائم کړے دے۔ صاحب د الکواکب الدریه د شیخ د یو معاصر نه نقل کوی۔ چه

ولم یقبل جرایة ولاصلة بنفسه من سلطان ولا امیر ولاتاجر ولا کان مدخرا دینارًا ولادرهمًا ولامتاعًا ولاطعامًا وانما کانت بضاعته مدة حیاته ومیراثه بعد وفاته رضی الله عنه العلم[2]

دوئ نه خو چرے د حکومت وظیفه قبوله کړیده او نه ئے د یو حاکم او تاجر پیشکش قبول کړیدے۔ او نه ئے د ځان نه روسته روپئے۔ اشرفئے او سامان او خوراک پریښے دے بلکه د دوئ د ژوند سرمایه هم او پس د مرګ نه میراث هم صرف علم وو۔ اھ

[1] الرد الوافر صك [2] الكواكب ص ١٥٧

صاحب د الکواکب د دوئ روزانه مشاغل او نظام الاوقات په دے الفاظو سره بیانوی.

ولایزال تارةً فی افتاء الناس وتارةً فی قضاء حوائجهم حتی یصلی الظهر مع الجماعة ثم کذلک بقیة یومه ثم یصلی المغرب ویقرأ علیه الدرس ثم یصلی العشاء ثم یقبل علی العلوم الی ان یذهب هوی من اللیل وهو فی خلال ذلک کله اللیل والنهار لایزال یذکر الله ویوحده ویستغفره.[۱]

حضرت شیخ به کله په فتوی ورکولو کښې مشغول وه. او کله به د خلقو نور ضروریات پوره کولو کښې. تر دے چه د ماسپخین مونځ به یے په جماعت سره اوکه او بیا باقی حصه د ورځے به هم دغه سے تیره شوه. او بیا ماښام مونځ به یے اوکه او د سبقونو سلسله به شروع شوه. او بیا به یے د ماسختن مونځ اوکه. او د درس او د مطالع سلسله به شروع شوه. تر دے چه د شپے ډیره حصه به تیره شوه. او په دے مینځ مینځ کښې به دوئ ذکر او د کلمهٔ توحید او د استغفار ورد به یے هم کود.

## د رفاعی ملنګانو سره د شیخ الاسلام مُناظره

د حضرت شیخ په زمانه کښې د رفاعی ملنګانو یوه فرقه وه. او مختلف قسم چلونه او اټکلونه ورته یاد وو. او په عوامو خلقو باندې یے ډیر اثر وه. دوئ د شریعت نه بالکل باغیان وو. او په لاسونو کښې یے د اوسپنے کړے اچولے وے. چونکه شیخ الاسلام دوئ د شریعت په تابعدارئ باندې مجبوره کول. د دے وجه نه ۹ جمادی الاولی سنه ۷۰۵ھ کښې د دوئ یو نمائنده جماعت د صوبه شام د نائب السلطنت دربار ته حاضر شو. او د ابن تیمیه متعلق یے شکایت اوکه. شیخ الاسلام اوفرمایل چه زه خو د شریعت خلاف ورزئ ته دوئ نه ... لیکن مونږ دے دلے دربار سلطنت کښې خپل شر کرتبونه او اټکلونه ښکاره کړل. او ویے وے چه مونږ باندې اور اثر نه کوی. شیخ اوفرمایل دا ټول اټکلونه او جادوګرے دی. مونږ په دے هیڅ اعتبار نه کوو. څوک چه اور ته داخلیدل غواړی نو اول دے حمام کښې په سرکه او واخویانے خه او لامبولے شی او بیا دا خلیږی. لیکن هم کچرے او د اثر اونه کړ نو دا به د ده د حقانیت دلیل نه وی. بلکه دا به د ده استدراج وی.

په دے خبرو اترو کښې د دے ملنګانو د یو ملنګ (شیخ صالح) نه دا خبره اوخته چه څو مونږ اټکلونه تاتاریانو په مخکښې چلیږی. د شریعت په مقابله کښې نه چلیږی. دا خبره خلقو واوریده نو فیصله شوه. او د دوئ نه د غاړے طوقونه او د لاسونو زنځیرونه جبرًا او ویستلے شو. او شیخ الاسلام دے نه بعد د رفاعیت خلاف یوه رساله اولیکله.[۲]

## د شیخ الاسلام سیاسی او فوجی کارنامے

د شیخ الاسلام کارنامے صرف تبلیغ و تدریس او تصنیف نه وه. بلکه ملکی سیاسیاتو او فوجی معرکو کښې هم دوئ مکمله حصه اخستے وه. بلکه په سخت وخت کښې د قوم سیاسی

[۱] الکواکب الدریه ص ۱۵۶ ؛ [۲] البدایه والنهایه ص ۳۶ ج ۱۴ ؛

راهنمائي هم دوئ کړے وه- او په داسے وخت کښې به دوئ خپل تمام انفرادي کارونه تدريس وغيره بالکل معطل کړل- او سياسي مُهِمّاتو کښې به ئې حصه آخسته او د قوم راهنمائي به ئې کوله. مندرجه ذيل بيان کښې د دوئ متعلق څه مختصر وضاحت پيش کيدے شي-

په دغه دور کښې اسلامي ملکونو باندې د تاتاريانو مظالم عروج ته رسيدلي وو- او عراق د ايران باندې دوئ مستقله قبضه کړے وه- او په هرځائ کښې د دوئ رعب دومره زيات وه چه چا به د تاتاري نوم واوريدو نو بيا به تښتيدے نه شه- په دمشق او شام باندې تراوسه پورے دوئ قبضه نه وه کړے- او دا علاقه د مصري سلطان (الملک الناصر محمد بن قلاؤن) زيرِ سلطنت وه- ليکن تاتاريانو د دے علاقے بلکه ورسره د مصر د قبضے د پاره سکيمونه جوړ ول.

چنانچه د سنه ۶۹۹ھ په اوائلو کښې متواتر دا اطلاعات دمشق ته را اورسيدل- چه د ايران وعراق تاتاري فرمانروا "قازان" په شام باندې د حملے کولو اراده لري- او فوجونه ئې دمشق طرفته رااليږلي دي- د دے اطلاع سره په خلقو پريشاني او دهشت خور شه- او د حماة او د حلب وغيره علاقو نه خلق دارالسلطنت دمشق ته جمع کيدل شروع شو. ليکن په دے څه اطمينان اوشه چه مصري سلطان الناصر شاهي فوجونو سره د تاتاريانو مقابلے د پاره شام ته راروان دے- چنانچه په ۸، ربيع الاول سنه ۶۹۹ھ باندې مرکزي فوجونه صوبائي مرکز دمشق ته را اورسيدل- او په ۲۷، ربيع الاول سنه ۶۹۹ھ باندې دمشق نه باهر د قازان او د سلطان د فوجونو په مينځ کښې خونريزه جنګ اوشه- خو اسلامي فوجونو شکست اوخوړو او مصري فوجونه مصر ته او شامي فوجونه دمشق ته او تختيدل- او خلقو کښې سخته پريشاني خوره شوه- او د تاتاري فوجونو په دمشق کښې خطره د داخليدو پيدا شوه- او د دمشق ټولو سربرآورده ليډرانو، حکام- قاضيانو- تاجرانو- مرکز بالکل خالي کړو- او مصر ته اوتختيدل. غرض دا دے چه په دے نازک او پُرخطر وخت کښې د ابن تيميه رح نه بغير بل هيڅوک سياسي ليډر او راهنما دمشق کښې موجود نه وه-

## د شيخ الاسلام د قازان سره ملاقات

په دے حالاتو کښې حضرت شيخ د يو څو علماؤ او رفقاؤ سره د قازان د ملاقات فيصله اوکړه- او د کلي په ورځ ۳، ربيع الثاني سنه ۶۹۹ھ باندې د حمص او د دمشق په مينځ کښې "نبک" (نن زمانه کښې دا يو بهترين سير ګاه دے) مقام کښې د قازان سره ملاقات اوکه- او په دوران ګفتګو کښې هغه ته د اتباع شريعت او د خوفِ خُدا تلقين اوکه- او ورته ئې اووے "چه ستا دعوي خو دا ده چه زه مسلمان يم او خبر شوے يم چه تا سره قاضي- امام شيخ- مؤذن هم شته دے- ليکن سره د دے نه ته په مسلمانانو باندې حمله کوے- او ظلمونه ورباندې کوے- حالانکه ستا مشران اګر که کافران وو- خو داسے کارونه هغوي هم نه کول

وعده به ئې چه او کړه نو سړې ته به يې رسوله او ته خو د وعدې خيال هم نه ساتې»

په دې مجلس کښې چه د قازان د طرف نه د ميلمستيا د پاره دسترخوان او غوړولے شو نو حضرت او وے - چه دا دسترخوان د مظلومو مسلمانانو په مال باندې تيار شوې دے . زه د اد نشم خوړلے - د دې سفارتي وفد يو رکن شيخ کمال الدين رح فرمائي چه دوران گفتگو کښې به چه د قازان لهجه سوه مره سخته شوه دو مره به شيخ ورته نژدې کيدو حتیٰ چه د دواړو زنگنو شريدل سره او لگيدل.

په قازان باندې د شيخ گفتگو دومره اثر او کړ چه آخر کښې ده او وے چه ما ته دعا او کړه . نو شيخ په دعا کښې او وے «په اے الله چه کچرې د قازان مقصد د دې جنگ نه اعلاء کلمة الحق وي - نو ته يې امداد او کړه . او که دنيوي سلطنت او حرص يې غرض وي . نو ته ور سره پوهه شې» د وفد يو بل رکن قاضي القضاة ابو العباس رح فرمائي چه دوي به دعا کوله او قازان به آمين وے او جلاد په سر او لاړه - نو مونږ به خپلے جامے نغښتے چه د ابن تيميه رح د وينو دهارے په مونږ پرے نو ښي به

ليکن افسوس دے چه د دې ملاقات پائيدار اثر په قازان باندې او نشو او دمشق کښې قتل عام شروع شو او قازان په دې علاقه باندې خپل نائب مقرر که او هغه حکومت شروع کړ - ليکن ۲ / رجب سنه ۶۹۹ھ باندې د قلعه دار د طرف نه اعلان او شو چه مصري فوجونه دوباره د تاتاريانو د مقابلے د پاره راروان دي - چنانچه ۳ / رجب باندې د قازان نائب بولائي سره د تاتاري افسرانو نه دمشق نه په تيخته لاړل - او ۷ / رجب پورې دمشق د تاتاريانو نه بالکل خالي وه - دا ټول خفيه انتظام د ابن تيميه رح وه - او امير قلعه به د ده نه راهنمائي غوختو.

۹ / رجب باندې بله اطلاع راغله چه مرکزي فوجونه راروان شويدي - چونکه په دې وخت د دمشق کښې هيڅ يو ذمه دار افسر او منتظم نه وه - په دې وجه حضرت شيخ د ښار انتظام په خپل لاس کښې واغست او د انتظام سره يې خلق ته . . . وعظ نصيحت هم شروع کړ - او ورته يې او فرمايل چه هر مصيبت د انسان د عمل په وجه راځي - نو تاسو خپل عمل سم کړئ.

چنانچه حضرت شيخ د خپلو شاگردانو په امداد سره د ښار ټولے شراب خانے بندے کړے او خوړمات کړل - او په دې شراب خانو کښې چه کوم شرابيان بد معاشان وو - هغوي ته يې تعزير ورکړ - او د سنه ۶۹۹ھ په جنگ کښې چه کوم کوهستاني بد عقيدہ خلقو (اسماعيلي فرقه او عيسائي باطنيان)

---

ﻟﻪ د قازان اسلامي نوم «محمود» د ے - دے د چنگيز خان د نواسي ځوي يعني کړوسے وه - په سنه ۶۹۳ھ کښې د امير توزون رحمه الله د تبليغ په وجه مسلمان شوے وه - ليکن بيا هم سنه ۶۹۹ھ پورے ده کښې څه نمايان اخلاقي تبديلي نه وه راغلے او د تاتاريانو په غارت گرئ کښې او په خونريزئ کښې د ده څه فرق نه وه راوستے (از هامش تاريخ دعوت ص۳۸ ج ۲ ) ته الکواکب الدرية في مناقب الامام المجتهد شيخ الاسلام ابن تيميه تاليف الشيخ مرعي بن يوسف الکرمي الحنبلي ص۲۵ ، ۱۳ .

د تاتاریانو سره امداد کړے وه۔ او د اسلامي فوجونو نه ئې د شیخ په مشوره د دغو خلقو د دوئ تادیب هم اوکړه او توبه ئې ورباندې اوویستله او د بیت المال د پاره ئې په دوئ باندې ټیکسونه اولګول۔ او په ۱۳، ذی قعدهٔ باندې دا مهم سرته اورسیدو۔ او شیخ د کوهستان د علاقې نه دمشق ته په کامیابۍ سره واپس راغے۔

په ابتداء د سنه ۷۰۰ھ کښې د تاتاریانو د دوباره حملے اطلاع اوشوه۔ نو حضرت شیخ یو طرف ته په مسلمانانو کښې د تبلیغ و تقریر په ذریعه سره د جهاد جذبات پیدا کړل۔ او بل طرف ته د شامي کونږو حوصله افزائي اوکړه۔ او په خپله د مرکزي حکومت نه د امداد غوښتو د پاره مصر ته لاړل۔ او سلطان ته ئې ترغیب ورکړو۔ چنانچه د دے مهم اثر دا وشو چه تاتاریان د لارے نه واپس شو۔ او جنګ اونشو۔ (وکفی الله المؤمنین القتال۔)

رجب سنه ۷۰۲ھ کښې بیا د تاتاریانو د حملے اطلاعات را اورسیدل۔ او معلومه شوه چه تاتاریان دے ځل په سخت اهتمام او تیارئ سره راروان دی۔ او دے ځل دوئ د شام د قبضه کولو مکمل عزم او اراده کړیده۔ نو شیخ الاسلام خپلے سرګرمئ تیزے کړے۔ د بخاری شریف د ختم او د قنوت نازله ځائ په ځائ ئې انتظامات اوکړل۔ او د تبلیغ و تشجیع تقریرونه کول ئې شروع کړل۔ او دا فتویٰ ئې ورکړه چه د تاتاریانو حیثیت د خوارجو دے او دوئ سره جنګ بالکل اسلامي جهاد او کار ثواب دے۔ سلطان مصر سره ئې دوباره ملاقات اوکړو۔ او ترغیب ئې ورکړو۔ چنانچه په ۲، رمضان سنه ۷۰۲ھ باندې د "..." په میدان کښې صفونه برابر کړے شو۔ او جنګ شروع شو۔ حضرت شیخ د شامي فوجونو سره باقاعده جنګ کښې شریک شو۔ او په دوران جنګ کښې به ئې آیات د جهاد لوستل او جنګ به ئې کولو۔ تاتاریانو شکست اوخوړو او شیخ الاسلام په کامیابۍ سره په دوشنبه ۴، رمضان باندې دمشق ته راغے نو ښارانو استقبال ئې اوشو۔ او په سه شنبه ۵، رمضان باندې سلطان د اعیان مملکت سره دمشق ته راغے او مملکت کښې امن و امان قائم شو۔

کېدے په دے ټول مهم کښې د شیخ راهنمائي او همت نه وے نو مرکزي او صوبائي دوارو حکومتونو همت بایللے وو۔ (جزاه الله عنا وعن سائر المسلمین المجاهدین اللهم آمین)

## د شیخ الاسلام اولنے درس

په سنه ۶۸۲ھ کښې چه د شیخ الاسلام والد بزرګوار عبد الحلیم بن تیمیه رحمه الله وفات شو نو په جامع اموي کښې د خطابت او په دار الحدیث کښې د شیخیت حدیث مسند خالي شو۔ لیکن دا خلا ډیرے ورځے نه وه۔ ځکه چه په ۲، محرم سنه ۶۸۳ھ باندې حضرت شیخ د ۲۲ کالو په عمر کښې دا مسند سنبهال کړه۔ او اولنے درس ئې ورکړو۔ په دے درس کښې د دمشق مشهور فضلاء علماء خصوصاً شافعي قاضي القضاة بهاء الدین ابن الترکي رحمه الله شیخ الشافعیه تاج الدین

الفزاری رح۔ دَ حنابلو نه زین الدین رح بن المنجا رح وغیره حضرات شریک وو۔

دَ دے درس په تمامو حاضرینو اثر اوشه۔ او خصوصًا علماء کرام حیران شو۔ چه یو ماشوم لګ عمر کښې دوئ په خپل اولنی درس کښې بهترین علمی نکتے او دقائق بیانول۔ حتی چه ډیرو علماؤ دا درس قلمبند کړے هم وه۔ حافظ ابن کثیر رح چه دَ شیخ الاسلام په تلامذو کښې دے دَ سنه ۶۸۳ھ دَ واقعاتو په ضمن کښې دَ دے تذکره په دے الفاظو سره کوی۔

وکان درسًا هائلًا وقد کتبه الشیخ الفزاری رح بخطه لکثرة فوائده وکثرة ما استحسنه الحاضرون وقد اطنب الحاضرون فی شکره علی حداثة سنه وصغره فانه کان عمره اذ ذاک عشرین سنة وسنتین [1]

دا یو هیبت ناک درس وه۔ شیخ تاج الدین رح دَ فوائدو دَ ډیروالی او دَ حاضرینو دَ عام پسندیدګئ په وجه دا درس قلمبند کړے وه۔ حاضرینو دَ شیخ دَ کم عمرئ په وجه دَ دے درس ډیر تعریف کړے وه۔ ځکه چه په دے وخت کښې دَ دوئ عمر صرف دوویشت ۲۲ کاله وه۔

دَ راتلونکے میاشت یعنی دَ صفر په ۱۰ لسم تاریخ باندِ دَ جمعے په ورځ حضرت شیخ ته په جامع دمشق کښې دَ خپل والد په ځائ خپل تقریر په باقاعده ګئے سره دَ تفسیر القرآن دَ افتتاح په شکل کښې اوکه۔ دوئ دَ پاره خصوصی طور باندِ منبر کیخودے شه۔ او هره جمعه به دوئ په منبر باندِ دَ قرآن کریم تفسیر او تفسیری نکتے بیانولے۔ حاضرین به هره جمعه زیات وو۔ چنانچه دَ دے تفسیری تقریرونو شهرت دے حد پورے اورسیده چه دَ لرے لرے خاریو او ملکونو نه به خلق دَ تقریر دَ اوریدو دَ پاره راتلل۔ او دا سلسله تر ډیرو کلونو جاری وه۔

په ۴ شعبان سنه ۶۹۵ھ باندِ شیخ المدرسة الحنبلیه شیخ الحنابلة علامه زین الدین رح وفات شه۔ نو دَ دے مدرسے صدارت تدریس او اهتمام هم حضرت شیخ ته اوسپارلے شه۔ او دوئ دَ دار الحدیث صدارت او دَ جامع دمشق خطابت سره دَ دے مدرسے صدارت هم په حسن وخوبئ سره کړو۔

## دَ شیخ الاسلام اولنی مخالفت

حضرت شیخ دَ خپل درس وتدریس او دَ وعظ او تقریر په مشغله کښې مشغول وه۔ او په عوامو او خواصو کښې دَ دوئ شهرت او مقبولیت ورځ په ورځ زیاتیده۔ چه ناڅاپه په سنه ۶۹۸ھ کښې دَ دوئ اولنئ مخالفت دَ علمی طبقے دَ طرفه په زور شور سره شروع شه۔

واقعه دا وه۔ چه په سنه ۶۹۸ھ دَ شام دَ یو ښار ئیے «حماة» دَ یو څو مسلمانانو دَ طرف نه [illegible] ته دَ یو استفتاء دَ جواب ورکولو دَ پاره ملاؤ شوه۔ په هغے کښې دا سوال شوے وه۔ چه

[1] [illegible] ان آیتونو او دَ قاوت بنی آدم بن اصبعین

من اصابع الرحمن - یضع الجبار قدمہ فی النار پشان حدیثونو متعلق دَ علماءُ تحقیق څہ دے؟
او دَ صفاتِ الٰهیوُ متعلق دَ اهل سنت والجماعت مسلک څہ دے؟

شیخ الاسلام دَ دے مفصل جواب[1] ورکہ - او پہ هغے کښې ئے دَ صحابوُ، تابعینُ تبع تابعینُ ائمو مجتهدینو او دَ امام ابو الحسن اشعریؒ - امام ابوبکر الباقلانیؒ امام الحرمین او دَ نورو متکلمینُ متقدمینُ دَ اقوالُ پہ روښنائے کښې دا اولیکل - چہ پہ کتاب و سنت کښې چہ دَ الله تعالےٰ دَ کومو صفاتُ، اسماءُ ذکر دے پہ هغے باندِ اجمالی ایمان راوړل واجب دی - او دَ دے هم هغہ حقیقت منل ضروری دی کوم چہ دَ الله دَ شان سره مناسب وی - او دَ تشبیہ و تجسیم او هم دا رنګے دَ نفی و تعطیل نہ منزه او پاک ګڼړل ضروری دی - یعنی نہ خو دا جائز دی چہ مونږ دا صفات او اسماء پہ مخلوق باندِ قیاس کړو - او دَ جسمیت قائلہ شو - او نہ دا جائز دی چہ مونږ دَ دے صفاتو نفی اوکو - یا دا سے تاویل اوکو چہ دَ هغے پہ وجہ بہ دا الفاظ صرف مجازی الفاظ اوګرځی - حالانکہ دا دَ الله تعالےٰ حقیقی صفات دی - او رسول الله صلے الله علیہ وسلم او قرآن کریم او سلف صالحینُ دا دَ الله صفات منلی دی - او تاویل ئے نہ دے کړے - نو تاویل کول دَ سلف صالحینُ دَ طریقے نہ عدول دے - لکہ څرنګے چہ دَ الله تعالےٰ ماهیت او حقیقت مونږ تہ معلوم نہ دے او بیا هم مونږ ایمان دَ هغے پہ وجود ښتہ دے - هم دغہ رنګے دَ هغہ دَ صفاتو کنہ او حقیقت مونږ تہ نہ دے معلوم باوجود دَ دے نہ مونږ لره پہ دے صفاتو باندِ ایمان راوړل ضروری دی -

او اشتراک فی اللفظ دَ تجسیم تقاضی نہ کوی - لکہ څرنګ چہ صفات سبعہ - علم[1] حیات[2] قدرت[3] سمع[4] بصر[5] کلام[6] اراده[7] - دَ هغہ صفات دی - او مونږ ئے پہ حقیقت نہ پوهیږو هم دغہ رنګے ید - وجہ - قدم - استواء علے العرش - نزول الی السماء - وغیره دَ هغہ صفات دی او مونږ ئے پہ حقیقت نہ پوهیږو - لکہ څرنګے چہ دَ علم و حیات اطلاق دَ تجسیم تقاضی نہ کوی هم دغہ رنګے دَ استواء علے العرش او دَ ید اطلاق هم دَ تجسیم تقاضی نہ کوی -

دا وه دَ شیخ الاسلام دَ جواب خُلاصہ او دَ صفاتو متعلق عقیده - او هم دغہ عقیده دَ قرون ثلاثو او دَ ائمو مجتهدینُ ده - لیکن مخالفینُ تہ دَ مخالفت یوه حربہ پہ لاس ورغلہ او چونکہ دوی بہ دَ استواء ید وجہ - وغیره الفاظو تاویل نہ کوو بلکہ ظاهری اطلاق بہ ئے کوو - دَ دے وجہ نہ معاندینُ دا پروپیګنډه شروع کړه چہ ابن تیمیہؒ دَ جسمیت قائل دے -

## دَ صفات الٰهیوُ متعلق دَ ائمو عقیده

دَ شیخ الاسلام دَ دغے عقیدے پہ وجہ چونکہ بعض کتابونو کښې دوی تہ دَ تجسیم

[1] دا جواب دَ "العقیدة الحمویة" پہ نوم مشهور دے - او تقریباً دَ پنځوس صفحات پہ رسالہ باندے مشتمل دے - دا رسالہ پہ "مجموعة الرسائل الکبریٰ" کښې شامل ده - او پہ ۱۳۲۳ھ کښې دَ مصر نہ شائع شوے ده

نسبت شوید ے۔ او حافظ کفایت الله صاحب هم دَ شرح عقائد جلالی په حواله بانډِ دا الزام په خپله رساله کښ لیکلے دے۔ دَ دے وجه نه مناسبه ده چه دَ صفاتو متعلق دَ اهمو عقیدو نقل کړے شی چه پته اولګی چه ابن تیمیه رح په دے عقیدو کښ منفرد او مبتدع نه دے۔ بلکه مُتبع سنت او پیروی کونکے دَ سلف صالحینُ دے۔

په دے باره کښ بالکل غیر مبهم او واضحه تصریح دَ "فقه اکبر" ده۔ چه دا دَ ملا علی قاری وغیره په ترڅ دَ امام اعظم ابوحنیفه رح تصنیف دے۔ عبارت دا دے۔

(۱) وله يدٌ ووجهٌ ونفسٌ كما ذكره الله فى القرآن الكريم فما ذكره الله فى القرآن من ذكر الوجه واليد والنفس فهوله صفاتٌ بلاكيفٍ ولا يقال ان يدهٗ قدرته او نعمته لان فيه ابطال الصفة وهو قول اهل القدر والاعتزال ولكن يدهٗ صفته بلاكيف اهٗ[1]

دَ قرآن کریم دَ تصریح مطابق الله دَ پاره ید وجه نفس شته دے۔ قرآن کریم کښ چه دَ الله تعالیٰ کوم صفات ذکر شوی دی هغه دَ الله بلاکیفه صفات دی۔ او دا به نشی ویلے چه مراد دَ ید نه قدرت یا نعمت دے۔ ځکه چه په دے سره ابطال دَ صفاتو راځی۔ او دا دَ قدریو او دَ معتزلو مذهب دے۔ بلکه ید دَ هغه صفت دے او غضب او رضاء هم دَ هغه بلاکیف صفتونه دی۔

(۲) قال فخر الاسلام البزدوی رح الحنفی واهل السنة والجماعة اثبتوا ما هو المعلوم بالنص اى بالايات القطعية والدلائل اليقينية وتوقفوا فيما هو المتشابه وهو الكيف ولم يجوزوا الاشتغال بطلب ذلك[2]

امام بزدوی رح فرمائی چه کوم صفات چه په آیات قطعیو او دلائل یقینیو سره ثابت دی۔ اهل سنت والجماعة دَ هغے اثبات کوی او کیفیت دَ حقیقت کښ توقف کوی۔ او په دے کښ مشغوله کیدل جائز نه ګنړی۔

(۳) وقد سئل ابوحنيفة رح عما ورد من انه سبحانه ينزلُ من السماء فقال ينزل بلاكيف وقال الامام الاعظم فى كتابه "الوصية" نقر بان الله على العرش استوى من غير ان يكون له حاجة اليه واستقرار عليه وهو الحافظ للعرش وغير العرش[3]

(۴) قال الامام مالك رح الاستواء معلوم والكيف مجهولٌ والسؤال عنه بدعة والايمان به واجبٌ وهذه طريقة السلف وهى اسلم[4]

(۵) نقل بعض الشافعية ان امام الحرمين رح كان يتأول اولاً ثم رجع فى آخر عمره وحرم التاويل ونقل اجماع السلف على منعه كما بين ذلك فى الرسالة النظامية وهو موافق لما عليه اصحابنا الماتريدية

(۶) الاصل الثامن انه تعالى استوى على العرش ... بمعنى يليق به وحاصله وجوب الايمان بانه استوى على العرش مع نفى التشبيه[6]

---

[1] فقه اکبر شامل شرح القاری ص۱۸۵ مصری ۱۲ [2] شرح فقه اکبر للقاری ص۱۳۶ ؛ [3] ایضاً ص۱۳۴ ؛ ۴۲
[4] ایضاً [5] ایضاً [6] المسایرة لابن الهمام رح ص۱۶ ؛

علامه ابن الهمام رح ددے نه بعد فرمائي. چه د استواء د استيلاء مراد ول يو احتمالي خبره ده. ځکه چه په دے بانډې هيڅ دليل نشته دے چه مراد د استواء نه بعينه استيلاء ده. نو واجبي او يقيني خبره هم داده. چه مراد استواء بلاکيف ده. هاں کچرے دا خطره وي چه عوام به د استواء نه استواء الجسم مراد کړي. نو کچرے د دے خطرے د سد باب د پاره نه دے د پاره چه دا مراد دے تاويل ئے اوکړے شي. نو خير دے. اهر کلام العلامه۔

امام حجة الاسلام غزالي رح فرمائي.

(۷) وانه مستوٍ على العرش على الوجه الذى قاله وبالمعنى الذى اراده استواءً منزهًا عن المماسة والاستقرار وهو فوق العرش وفوق كل شئ الى الثرى فوقية لا تزيده قربًا الى العرش والسماء [1]

(۸) قال الامام العلامة ابو عمر ابن عبد البر المالكي رح اهل السنة مجمعون على الاقرار بالصفات الواردة كلها فى القرآن والسنة والايمان بها وحملها على الحقيقة لا على المجاز... واما اهل البدع الجهمية والمعتزلة كلها والخوارج فكلها ينكرها ولا يحمل شيئًا منها على الحقيقة [2]

(۹) قال الشيخ العارف ابو محمد عبد القادر الجيلاني رح وهو بجهة العلو مستوٍ على العرش ولا يجوز وصفه بانه فى كل مكان بل يقال انه فى السماء على العرش كما قال الرحمٰن على العرش استوىٰ وينبغى اطلاق صفة الاستواء من غير تاويل وانه استواء الذات على العرش [3]

حضرت شيخ د ابن عبد البر او د امام عبد القادر جيلاني رح نه علاوه هم د دے مضمون د تائيد د پاره د مذاهب اربعو د اکابرو علماء نقول پيش کړيدی. لکه چه د دوی د رسالے "المحنة" د مطالعے نه معلوميږی. او په آخر کښې فرمائي. چه زما هم بالکل دغه عقيده ده. چه "هو مستوٍ على العرش حقيقة بذاته بلا تكييف ولا تشبيه"

(۱۰) احمد رضا خان چه هرکله په علماء د حرمين د علماء ديوبند متعلق غلط فهمئے او افتراءات جوړ کړل نو د هغے ځائي علماء د مولانا خليل احمد سهارنپوری صاحب د بذل المجهود په خدمت د تحقيق حال د پاره يو مفصل سوالنامه را اوليګله. نو مولانا مرحوم د "المهند" په نوم بانډې د دے سوالنامے جوابات په عربئے کښې اوليکل او تمام علماء د ديوبند د دے جواباتو تصديق اوکړ. او اوس دا د علماء ديوبند متفقه عقائد شمارلے شي. په دے سوالنامه کښې يو سوال د استواء على العرش متعلق هم دے. د دے په جواب کښې مولانا فرمائي.

"اس قسم کی آیات میں ہمارا مذہب یہ ہے کہ ان پر ایمان لاتے ہیں اور کیفیت سے بحث نہیں کرتے" [4]

---

[1] الاربعين للغزالي رح مطبع کردستان العلميه بمصر ۱۳۲۸ھ ص۷ [2] رسالہ "المحنة"... لابن تيميه رح بحواله تاريخ دعوة ص ۲۷ [3] ايضاً ص ۵۳ [4] ترجمه "المهند على المفند" ص ۲۳

دَ شیخ الاسلام هم دغه عقیده وه۔ کوم چه دَ مذکوره عبارتو نه معلومیږی۔
و کړے دا عقیده دَ تجسیم وی. نو امام اعظم رح وغیره تمام مذکوره علماء هم دَ مجسمو
وو۔ لیکن چونکه دا حضرات یقیناً دَ عقیدے دَ جسمیت نه پاک وو۔ نو حضرت شیخ هم دَ
دے الزام نه پاک دے۔

دَ شیخ الاسلام دا عقیده دَ هغه په مختلفو رسالو کښ موجود ده۔ مثلاً ''العقیدة
الحمویة'' ''العقیدة الواسطیة'' ''الرسالة المدنیة'' وغیره۔ او دا دیرے واړه رسالے
... کښ چاپ شوی دی۔ او عام طور سره ملاویږی۔
... حافظ صاحب دِ دا رسالے اوګوری۔ چه دَ دوی عقیده بعینه دَ امام اعظم رح او دَ نورو
سلف رح سره مطابق ده او که نه؟ دے کښ شک نشته دے چه شرح عقائد جلالی وغیره
کتابونو کښ په دوی باندِ دَ تجسیم الزام لګولے شوے دے۔ لیکن دَ حضرت شیخ دَ خپلو
... په مقابله کښ دا الزامات قابل قبول نه دی۔ بلکه په غلط فهمئ باندِ مبنی دی۔

## دَ قاضی امام الدین زړه نکرلے مناظره او دَ مخالفین شکست

دَ ''فتوی حمویه'' متعلق پوره روئیداد دَ ابن کثیر رح په الفاظو کښ دا دے۔
ابن کثیر رح فرمائی چه دَ علماؤ یو ډلے دَ شیخ په مخالفت کښ سرګرمی اختیار کړه۔ دَ دوی
... البر داوه چه شیخ دِ دَ حنفی قاضی شیخ جلال الدین مجلس ته حاضر شی۔ او خپله عقائد
... پیش کړی۔ لیکن دا خبره شیخ منظوره نه کړه۔ نو په تمام ښار کښ اعلان اوکړے شه چه
دا فتوی قابل قبول نه ده۔ لیکن امیر سیف الدین جاغان دَ حضرت شیخ حمایت اوکه۔ او
دَ دوی پروپیګنډه کونکو ته ئے تعزیر ورکه۔ نو څه او تختیدل او باقی خاموش شو۔ او بیا
... جمعے باندِ حضرت دَ معمول مطابق جامع مسجد کښ تقریر اوکه۔ او دَ وانک لعلے
... عظیم تفسیر ئے بیان که۔ او دَ خالی په ورځ شیخ پخپله دَ قاضی امام الدین دربارته
... حاضر شه۔ مخالف علماء هم موجود وو۔ چنانچه دَ ''فتوی حمویه'' متعلق بحث و مناظره
... شوه۔ او حضرت شیخ ټول علماء په خپل دلائلو باندِ مطمئن کړل او حالات په اعتدال شو۔[۱]

## دَ شیخ الاسلام دویم مخالفت او مصر ته راطلب کول ئے

دَ دے نه بعد حضرت شیخ بیا په سنه المیناں درس و تدریس او وعظ و نصیحت کښ
مشغول شو۔ لیکن دَ دوی دَ روز افزون شهرت او مقبولیت په وجه دَ علماؤ یو ډلے دَ ده
سره دَ حسد رویه شروع کړے وه۔

او بل طرف ته په دے دور کښ دَ شیخ محی الدین ابن عربی م سنه ۶۳۸ هـ

[۱] البدایه والنهایه ج ۱۴ ص ۴

معتقدین ډیر زیات وو۔ خصوصاً د مرکزي حکومت یو انتهائي پسندیده او مقبول عالم الشیخ نصیر المنبجي خو د ابن عربي سخت معتقد او مبلغ وه۔ او حضرت شیخ اول کښې د ابن عربي د بعض کتابونو مثلاً کنه المحکم۔ المربوط۔ الدرة الفاخرة۔ مطالع النجوم۔ وغیره د مطالعې په وجه ډیر سخت تاثر آغشتې وه۔ لیکن د بعض دوستانو په مشوره چه دوئ د ابن عربي مشهور کتاب "فصوص الحکم" مطالعه او کړه۔ نو دې نتیجې ته اورسیده چه دے د وحدة الوجود[1] قائله وه۔ چنانچه د ده په تردید کښې د "الرد الاقوم علی فصوص الحکم" په نوم باندئ کتاب اولیکه۔ نو د مخالفت یو بل میدان مخالفینو ته په لاس راغے۔ او شیخ نصیر خو سخت مخالف شه۔ او خپل اثر رسوخ ئې د شیخ د گرفتارئے او مصر ته د طلبئے د پاره استعمالول شروع کړه۔ حضرت شیخ په ۷۰۴ھ کښې شیخ نصیر ته یو مفصل خط هم اولیکه۔ چه په هغې کښې د ابن عربي د مسلک وضاحت او تردید په دلائل سره لیکلے وه[2] لیکن په هغې څه اثر او نشه۔ او مخالفت ئې پرے نخود۔

چنانچه ۵/ رمضان ۷۰۵ھ باندئ د مرکزي حکومت د طرف نه د شام د گورنر په نوم باندئ دا فرمان راغے چه ابن تیمیهؒ مصر ته را اولیگه۔ گورنر د شیخ ډیر معتقد وه۔ د ده او وے چه زه به مرکز ته څه مناسب جواب ورکړم او ته مه ځه۔ نورو دوستانو هم منع کوو۔ مگر شیخ منع نشه۔ او د مصر په سفر روان شه۔ په لار کښې ئې د غزه په جامع مسجد کښې درس ورکه۔ چه ډیر زیات خلق په کښې شریک وو۔ او په ۲۲/ رمضان مصر ته اورسید۔

## د شیخ الاسلام گرفتاري

د جمعې په ورځ د مانځه نه پس قصر صدارت کښې یو ډیر لوئ مجلس منعقد شه۔ چه په هغې کښې قاضیان۔ افسران حکومت ټول موجود وو۔

شیخ رحمه الله د گفتگو آغاز کوو۔ مگر اجازت ور نه کړے شو۔ او بعض علماءُ د حضرت شیخ په عقائدو اعتراضات کول شروع کړل۔ نو دوئ د جواب ورکولو د پاره حمد و ثنا سره د خپل کلام ابتداء او کړه۔ نو ورته او وئیلے شو۔ چه مونږ ستا خطبه اوریدلو د پاره نه یو جمع شوی۔ (حالانکه دوئ جواب نه ورکول) د دے[3] پس شیخ تپوس اوکه۔ چه څوک په دے مقدمه کښې به حکم کوی۔ نو او وئیلے شو چه قاضی ابن مخلوف مالکيؒ۔ نو دوئ او وے۔ چه عجیبه انصاف دے چه دا خو څما په مقابلینو کښې اول نمبر مقابل دے۔ نو حکم څرنگے کیدے شي۔ په دے حقه خبره باندئ قاضي صاحب غصه شه او بغیر د تحقیق حال نه او بغیر د دے نه چه حضرت ته ئې د صفائي موقع ورکړے وے۔ د شیخ خلاف ئې فیصله اوکړه۔ او د گرفتارئے حکم ئې اوکه۔ چنانچه شیخ

---

[1] د ابن عربي عقیده او د وحدة الوجود مکمل بحث څما کتاب "جواهر التوحید" کښې موجود دے ۱۲ گوہر الرحمان عفي عنه

[2] دا مکتوب په جلاء العینین ص۵۵ باندئ موجود دے ۱۲ گوہر ع دا د شیخ الاسلام په مصر کښې لومړۍ مقابله وه

[3] د دے مجلس مکمل روئیداد حضرت شیخ پخپله رساله "المحنة" کښې بیان کړیدے ۱۲ گوہر

سره دَ خپلو رونړو شرف الدین او زین الدین دَ مصر مشهور جیل خانه "جُب" کښې قید کړے شو.

او په ۷۰۶ھ کښې دَ اختر په شپه دَ حکومت دَ طرف نه دَ دوی دَ رهائی دَ پاره دَ خپلو اعتقاداتو نه دَ رجوع کولو شرط پیش کړے شو۔ لیکن شیخ او فرمایل ــ

این خیال است و محال است و جنون؛

## دَ شیخ الاسلام رهائی

څلور میاشتے بعد ۱۴ / صفر ۷۰۷ھ باندے دوباره دَ دوی دَ رهائی کوشش اوکړے شو۔ او قاضی القضاة بدرالدین بن جماعة دوی سره جیل خانه کښې ملاقات اوکړ۔ لیکن په جیل خانه پریخودو باندے رضامند نه شو۔ حتی چه په ۲۳ / ربیع الاول ۷۰۷ھ باندے دَ شام یو رئیس امیر حسام الدین چه دَ شیخ الاسلام دَ معتقدینو نه وو په خپله جیل خانے ته لاړ او شیخ الاسلام ئے دَ ځان سره دَ مصری گورنر مکان ته راوُست۔ . . . دَ امیر موصوف خیال دا وو چه شیخ دَ ده سره شام ته واپس لاړ شی۔ لیکن دَ مصری گورنر په تجویز و سفارش او دَ شیخ دَ خپلے رائی مطابق دوی مصر کښې پاتے شو او چا چه دَ ده سره ظلم کړے وو۔ هغه ټول خلق ئے معاف کړل۔ او دَ درس و تدریس کار ئے شروع کړ۔

مصری فضا هم دوی دَ پاره سازگاره نه وه۔ علماءُ هم مخالفت کوو۔ او صوفیائے دَ عناد روّیه په ابن عربی باندے دَ تنقید په وجه شروع کړے وه۔ لیکن باوجود دَ دے نه دیرپتنکان دَ توحید و سنت دلته هم دَ دوی نه چاپیره شو۔ او کار سنه په اهتمام انتظام سره شروع شه.

شام کښې دَ دوی والده ژوندئ وه۔ او چونکه هغه دَ خپل لخت جگر دَ واپس راتلو ډیره لیواله وه۔ دَ دے وجه نه حضرت شیخ والدے ته یو خط اولیکه۔ چه ما ته احساس دے۔ چه ته ما کښے ډیره خپه ئے۔ لیکن زه پو هیږم چه مصر کښې دَ توحید و سنت دَ کار سخت ضرورت دے او شرعاً مجبور یم۔ چه تر یو وخته سنا سو خدمت کښې حاضر نشم[1] او شام کښې دَ خپلو شاگردانو او معتقدینو په نوم باندے ئے هم یو خط اولیږه۔ چه خما مخالفینو سره ښه سلوک کوئے۔ وخدا دا په وجه هیچا سره تعلقات مه قطع کوئ[2]

دَ عوامی درسونو نه علاوه شو ځائے حضرت شیخ دَ "قاهرے"، مشهور مدرسو کښې خصوصاً "المدرسة الصالحیة"، کښې خواص فضلاء او علماء طلباؤ ته درس و نه ورکړل۔

## دوباره گرفتاری او رهائی

مصر چونکه دَ "وحدة الوجود"، دَ عقیدے مرکز وه۔ او دَ شیخ مسلک صوفیاء هم په دے ملک کښې ډیر زیات او با اثره وو۔ الخ

---

[1] دا مکمل خط تاریخ دعوت صـ۸۷ و ۸۸ جـ۲ کښې دَ الکواکب الدریه په حواله درج دے ۔ [2] دا خط هم مکمل په تاریخ دعوت صـ۹۲ باندے دَ ابو زهره مصری دَ کتاب "ابن تیمیه" په حواله درج دے۔

د دے عقیدے برملا تردید کوو۔ او ورسره د استعانت بغیر الله تردید هم کوو۔ د دے وجه نه
د صوفیاء گروپ په لے حکومت ته شکایت اوکړ۔ او سرکاری طور باندے دوباره یو مجلس مناظره
منعقد کړے شو۔ لیکن په دے مجلس کښې حضرت شیخ خپل مسلک داسے واضح کړ او دلائل ئے
پیش کړل چه هیچا ئے مخالفت اونکړے شه۔ او مجلس برخاست شه۔

لیکن د صوفیانو د بار بار شکایتونو په وجه حکومت مجبور شه چه بغیر د قاضیانو د حکم نه شیخ
نظربند کړ۔ او د خدمت د پاره ئے سرکاری خادم ورسره مقرر کړے شه۔ او د عامو خلقو د
ملاقات او د استفادے اجازت هم ورکړے شه۔ لیکن آخر په مدرسه صالحیه کښې د فقهاء
یو اجتماع اوشوه۔ او د دوی د متفقه مطالبے مطابق دوی رها کړے شو۔[1]

## سیاسی تغیر او د شیخ الاسلام جلاوطنی

د رهائی نه لږه زمانه بعد دفعتًا په مصر کښې سیاسی
انقلاب راغے۔ او په ۷۰۸ھ کښې سلطان ناصر بن قلاوون چه د ابن تیمیه رح معتقدینو کښې وه
د بعض وجوهاتو په بنا باندے د سلطنت نه کناره کشی اوکړه۔ او وزیر سلطنت رکن الدین بیبرس
د مستقل سلطنت اعلان اوکړ۔ او تخت نشین شه۔

چونکه دے د شیخ نصیر په معتقدینو کښې وه۔ د دے وجه د مملکت تمام کاروبار عملاً د شیخ
نصیر په لاس کښې راغے۔ او دے خو د شیخ الاسلام په سختو معاندینو او د ابن عربی په سخت
معتقدینو کښې وه۔ د دے وجه نه حضرت شیخ رح په صفر ۷۰۹ھ باندے په اسکندریه کښې نظربند
کړے شو۔ ځکه چه دا د صوفیاء غالیو مرکزی مقام وه۔ نو ممکن وه چه د چا ظالم د لاسه حضرت
شیخ شهید کړے شوے وے۔ او بغیر د بدنامے نه حکومت وقت او شیخ نصیر د دوی نه
خلاص شوے وے۔ لیکن سه ما کل مایتمنی المرء یدرکه؛ تجری الریاح بما لا تشتهی السفن؛
په بنا باندے په اسکندریه کښې د شیخ حلقهٔ ارادت ډیره زیاته شوه۔ او دا مقام د توحید و سنت
یو بل مرکز جوړ شه۔[2]

## د شیخ الاسلام رهائی او شاهانه عزت افزائی

سلطان ناصر بن قلاوون دوباره مصر باندے
قبضه اوکړه۔ او رکن الدین بیبرس په ۷ ذیقعده ۷۰۹ھ باندے د شام گورنر امیر سیف الدین
گرفتار کړ۔ او بیا قتل کړے شو۔ سلطان د مصر شاهی محل ته د راتلو سره فوراً په ۲ شوال
۷۰۹ھ باندے اسکندریه ته د ابن تیمیه رح مصر ته شاهانه طریقه باندے د راتلو حکم
جاری کړ۔ او په ۸ شوال ۷۰۹ھ باندے حضرت شیخ شاهانه طریقه باندے مصر ته راروان شو
او چه قصر شاهی ته را اورسیده نو سلطان استقبال د پاره دروازے ته راغے۔ او بیا ئے ورسره

[1] البدایه ص ۴۹ ج ۱۴؛ [2] ایضاً ص ۵۰ ج ۱۴

په بنده کمره کښې د ابن تیمیه رح د مخالف علماء مثلاً قاضي ابن مخلوف رح، شیخ نصیر وغیره د قتل متعلق مشوره اوکړه. لیکن شیخ د دې تجویز سخت مخالفت اوکړ. او عامه معافي ئې ورکړه. او دوباره په درس وتدریس کښې او په اشاعت توحید وسنت کښې په سرګرمۍ سره مصر کښې مشغول شه.[1]

## دمشق ته واپسي ونظربندي

په شوال سنه ۷۱۲ھ باندې مرکز ته دمشق باندې د تاتاریانو د حملې اطلاعات ملاؤ شوې. نو سلطان سره د فوجونو ۸، شوال باندې د شام سفر شروع کړ. او ۲۳، شوال باندې صوبائي مرکز دمشق ته اورسید.

په دې سفر کښې شیخ الاسلام هم شریک وه. چه پوره اوه کاله پس خپل وطن ته واپس کیده. دمشق کښې د شیخ الاسلام اعزازي استقبال اوشه. د شیخ دا سفر اګر که د جهاد په اراده وه. لیکن دمشق ته د رسیدو نه بعد معلومه شوه. چه تاتاریان واپس شوي دي. د دې وجه نه دوئ په دمشق کښې سکونت اختیار کړ. او درس وتدریس ئې بیا شروع کړ.

د دې نه باندې شیخ فقهي مسئلو ته ډیره توجه کړې وه. او په دې دور کښې دوئ په خپل اجتهاد و استدلال سره درې څلور مسئلو کښې د مذاهب اربعو نه خلاف فتوې ورکړه. مثلاً مسئله طلقات ثلثه. مسئله حلف بالطلاق. مسئله شد رحال. مسئله توسل بالحرمه والجاه.

د دې کارنامې په وجه شامي علماء[2] ازسرنو مخالف شو. حتی چه په ۲۲، رجب سنه ۷۲۰ھ باندې شیخ په جیل کښې نظربند کړې شو. لیکن پنځه میاشتې اتلس ورځې پس د مرکزي حکومت د خاص فرمان مطابق ۱۰، محرم سنه ۷۲۱ھ باندې رها کړې شو.[3]

## آخري ګرفتاري

د سنه ۷۲۱ھ نه تر سنه ۷۲۶ھ پورې پینځه نیم کاله شیخ الاسلام سنه په آزادۍ او انهماک سره د درس وتدریس او وعظ وتصنیف په کار کښې مشغول وه. او په مدرسه حنبلیه یا په خپله مدرسه کښې به ئې درس ورکوو.

لکن د شیخ الاسلام د اولس[4] کاله مخکښې فتوې د شد رحال متعلق دوباره مشهوره کړې شوه او مخالفت شروع شه. حتی چه ۷، شعبان سنه ۷۲۶ھ باندې حضرت شیخ ته د آخري ځل ګرفتارۍ وارنټ ملاؤ شه. او شیخ په خندا پیشانۍ سره قبول کړ. او نظربند کړې شه. او د شیخ په شاګردانو باندې اخلاق سوز مظالم شروع کړل او معاندین ډیر زیات خوشحاله شو.[5]

---

[1] البدایه ص۵۵ ج۱۴ ؛ [2] ایضاً ص۸۷ ج۱۴ ؛ [3] ای علماء الاهوی وکان لہ حق ذلک لانہ حصل لہ ملکة الاجتهاد فافهم ۱۲ ګوهر ؛ [4] ابن تیمیه ؛ ابو زهره ص۸۰ ۱۲ ؛

## پہ آخری گرفتارئے باندِ دَاهلِ علم سخت احتجاج

دَ دے گرفتارئے خلاف بطور احتجاج دَمملکت دَ مختلفو علاقو نه براہِ راست مرکزی حکومت ته احتجاجی خطونه اولیکلے شو۔ خصوصاً دَ بغداد علماءُ یو متفقه خط سلطان ته اولیکه او په هغے کښے دَ خپلے بیزارئے او کافسوس[1] اظهار اوکه۔ لیکن حالات داسے وو چه حکومت دَ دوئ په نظربند ساتلو باندِ مجبور وو۔

## دَ جیل خانے مشاغل

حضرت شیخ په جیل خانه کښ ډیر لوئ قیمتی تصنیفات اولیکل۔ مخالفت په ډیر زور سره وو۔ حتی چه په ۹، جمادی الاخری ۷۲۸ھ باندِ دَ لوستو او دَ لیکلو ټول سامان بحق سرکار ضبط شه او په یکم رجب باندِ دَ دوئ ټول مسودات او اوراق "عادلیه"[2] کتب خانے ته منتقل کړے شو دا مسودات دَ کتابونو شپیته[3] جلدونه او دَ کاغذونو څوارلس[4] بنډلونه وو۔ دَ دے نه پس شیخ رح په منتشرو کاغذو باندِ په کوئلے سره لیکل شروع کړل[5]

## آخری ایام او وفات

په آخری ایامو کښ به حضرت شیخ اکثر دَ قرآن کریم تلاوت کوو۔ او هم په دے حالت کښ دے مجاهد اسلام پروانۂ توحید وسنت۔ عاشق خدا ورسول۔ شیخ الاسلام دَ ۲۲، ذیقعدة ۷۲۸ھ په شپه دَ اوه شپیته[6] کالو په عمر کښ دَ عالم فانی نه پرواز اوکه۔ فرحمه الله تعالیٰ[3]

## شیخ الاسلام یقیناً شیخ الاسلام وه

حافظ کفایت الله بطور طنز فرمائی چه "وهابیان" ابن تیمیه ته شیخ الاسلام وائی۔ دَ دے متعلق عرض دا دے چه شیخ الاسلام یقیناً شیخ الاسلام وه۔ او دا لقب دوئ ته وهابیانو نه دے ورکړے۔ بلکه دَ هغه معاصرینُ او نورو علماؤ دَ اهل سنت والجماعة ورکړید ے۔

(۱) دَ آخری گرفتارئے خلاف بطور احتجاج دَ بغداد علماؤ چه کوم خط مرکزی حکومت ته لیکلے وه۔ دَ هغے یوه ټکړه دا ده۔

لما فزع اهل البلاد المشرقية والنواحي العراقية التضييق على شيخ الاسلام تقي الدين احمد ابن تيمية رح سلمه الله عظم ذلك على المسلمين وشق على ذوي الدين وارتفعت رؤس الملحدين ﷺ

(۲) قال الحافظ ابن الحجر العسقلاني رح انه شيخ مشائخ الاسلام في عصره بلا ريب[2]

---

[1] دَ بغداد او دَ نورو علاقو خطونه په العقود الدریه ص۳۵۵ کښ موجود دی۔ [2] دا یو لوئ عمارت وو چه پکښ ابن خلکان "وفیات الاعیان" لیکلے وه او ابن مالک صاحب الفیه پکښ درس ورکړے وه ۱۳۵ کوز[illegible]

[3] ابوزهره ص۷۲ البدایه ص۱۳۶ ج۱۴ [5] العقود الدریه ص۳۵۵ وکواکب دریه ص۱۹۵ [6] الرد الوافر ص۷۸

(۳) مولانا عبدالحئی په السعایه ص۱۹۱ ج۲ کښ دیوے مسئلے د وضاحت په سلسله کښ د ابن القیم رح حواله په دے الفاظو سره ورکوی۔
وتوضیحه علی ما اورده شیخ الاسلام احمد بن تیمیه رحمه الله فی منهاج السنة الخ
د دے قسم مختلف حوالے پیش کیدے شی۔ مگر زما مقصد استیعاب نه دے بلکه بطور مثال یو څو حوالے پیش کول دی۔ او منصف مزاج لره دا هم بس دی۔

(نوټ) اردو خوان طبقے ته زه دا مشوره ورکومه۔ چه د شیخ الاسلام مفصل حالات معلومولو د پاره د ابوالحسن علی ندوی صاحب تاریخ دعوة و عزیمت جلد دوئم یا د کوکن عمری صاحب تاریخ ابن تیمیه ضرور مطالعه کړی۔

---

اللهم أرنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وأرنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه
اللهم ربنا آمین۔

مراد ما نصیحت بود و گفتیم    حوالت با خدا کردیم و رفتیم

---

مؤلف۔

العبد الفقیر گوهر رحمان عفا عنه المنان

۱۰ رجب سنه ۱۳۸۱ھ ۱۸ دسمبر سنه ۱۳۶۱ھ

---

لے حاشیه فیض الباری ص۱۶۳ ج۲ ؛ کتبه بنده فضل غفور۔ کالوخان۔

تاج الدین ناظم نشر و اشاعت
انجمن اسلامیہ ہوتی مردان نے
منظور عام پریس پشاور میں
چھپوا کر دفتر انجمن واقع
مسجد حاجی سرفراز خان صاحب
رستم خیل مردان سے شائع کیا۔

---

د حضرت شاہ اسمٰعیل شہید رحمۃ اللہ علیہ د کتاب المسمیٰ بہ
"تقویۃ الایمان"

پہ پښتو ژبہ کښې ترجمہ سرہ د مختصر حالاتو د حضرت شہیدؒ
او سرہ د مزید فوائدو چھاپ شویدہ۔ او نوم ئے دے
"تحفۃ الافغان" ترجمہ تقویۃ الایمان"

(مقام اشاعت)

کالو خان مسجد ڈھیری سر

قیمت۔ قسم اول ۲-۰-۱ قسم دوم ۰-۰-۱